

# په پښتو ادب کې د اخوند درويزه او د ده د پيروانو ادبي مقام

ليکوال

سرڅېړونکی محمد اسماعيل سربن

کابل - ۱۳۸۲ ش کال

د هیواد د تاریخي او فرهنګي شخصیت

نواب محبت خان د مړینې د دوه سوم

تلین د بین المللی سیمینار په ویاړ




دافغانستان د علومو اکاډمي
دژبو او ادبیاتو مرکز
د پښتو ادبیاتو انستیتوت

# په پښتو ادب کې د اخوند درویزه او د ده د پیروانو ادبی مقام

لیکوال

سرڅېړونکی محمد اسماعیل سرېن

کابل - ۱۳۸۲ ش کال

# د کتاب پیژندنه:


د کتاب نوم: په پښتو ادب کې د اخوند درویزه اودده دپیروانو ادبی مقام

لیکوال: سرڅیړونکی محمداسماعیل سړبن

مهتمم: محققه ظاهره هنګامه "خروټی"

تیراژ: ۱۰۰۰ ټوکه.

دلیکلو نیټه: ۱۳۶۵ هـ. ش

د خپریدو نیټه: ۱۳۸۲ هـ. ش.

د کمپیوټرسمبالوونکی: محمدیوسف "ستانکزی"

د چاپ ځای: د احمد طباعتی او صنعتی مطبعه.

# فهرست

# د رهنما استاد نظر

په پښتونخواکې تل ملي ازادي بښونکي او مترقي نهضتونه منځ ته راغلي دي، خو ډېر ځلې دغسې نهضتونه د تورو په لمسون پخپله د پښتنو له خوا غلي شوي دي.

دداسې نهضتونو يومثال په شپاړسمه پېړۍ کې د روښانيانو پاڅون دی چې د هند دمغلي بادشاهانو داستبداد او استيلاء په مقابل کې منځته راغلی و. ددغه پښتني نهضت نه جلال الدين اکبر سخت په ډار کې شو ځکه هغه د شيرشاه افغان او همايون تر منځ د شخړو ترخه تجربه ليدلې وه نوددغه نهضت د خپه کولو د پاره يې هرې ممکنې وسيلې ته لاس واچاوه. سيد علي غواص ترمذي چې دکورګانيانو خور يې او پلوي و، د دربار

په اشاره په زیات مهارت او مرموز ډول سره یې ځینې اخوندان لکه اخوند دوریزه او د همده د تلقیناتو په اثر لږ وروسته اخوند پنجو د اسلام په نامه د روښاني نهضت په مقابل کې راپورته کړل. دغه نهضت او ورسره مقابله یې د شپاړسمې او اووه لسمې پیړیو په ادبیاتو کې په مثبت او منفي ډول منعکس شوي دي. دا ادبیات دوه مسیره لري یو هغه مسیر او جریان دي چې روښان پیر یې په سر کې واقع دي او روښاني مکتب بلل کیږي او بل هغه مسیر دي چې اخوند درویزه یې په راس کې دی او د درویزه مکتب بلل کیږي.

په افغانستان کې د پیر روښان، دده د کورنۍ او طرفدارانو په ادبیاتو او مکتب باندې څیړنې شوې دي. آثار یې چاپ شوي دي. سیمینارونه ورباندې شوي دي او مواد یې راغونډ شوي دي مګر هغه بل مکتب چې د درویزه مکتب دی تر اوسه لا په تیاره کې پروت دی. که څه هم په لره او بره پښتونخواکې یو څه کار ورباندې شوی دي او متفرقې مقالې او مضامین په دې برخه کې لیکل شوي دي مګر یو داسې جامع او مکمل اثر یکی نه دي لیکل شوي چې د موضوع ټول اړخونه وڅیړي. نو د همدې کبله د ژبو او ادبیاتو دمرکز د پښتو ادبیاتو په دیپارتمنټ کې په۱۳۶۲/۱۱ نیټه یوعلمي مجلس جوړ شو او داموضوع یې د غور لاندې ونیوله او داسې پریکړه وشوه چې د سرمحقق معاون ښاغلی محمد اسماعیل سربن دې دا ضروري او کټور کار په غاړه واخلي او په پښتو ادب کې دې د درویزه د دکورنۍ ادبي مقام معلوم کړي. ټولې لیکنې چې په دې باره کې شوي دي هغه دې راټولې او منسجمې کړي واقعات دې ولیکي او عندې روایات دې له منځه یوسي (خذما

صفا ودع ماکدر) او په میتودیك ډول دې ددغې کورنۍ د ادبیاتو په تاریخ کې یو مستقل اثر ولیکی.

ښاغلی سرېن په ورین تندي دا کار ومانه او په ډېر شوق یې په کار پیل وکړ. هلې ځلې یې وکړې. منډې رامنډې یې وکړې. کتابخانو ته لاړ او راغی. پوښتنې یې وکړې او ځان یې ستړي کړ او تر ټولو ښه خبره داده چې دغه هڅې یې بې ځایه نه شوې او په نتیجه کې یو غوره او مکمل اثر منځ ته راغی. که څه هم ددې کار تصنیف یو ګران کار ؤ ځکه پخوا دا کار نه دی شوي چې د هغه نه تقلید او استفاده شوې وای بلکې دا تصنیف بندي او ترتیب یوازې دده د فکر محصول دی.

ښاغلی سرېن داخپل تیزس په اتو فصلونو کې ولیکه:

۱ - د اخوند درویزه پیژندګلوي.

۲ - د اخوند درویزه دعصر اجتماع، سیاسی او فرهنګی څیره.

۳ - د اخوند درویزه د تبارز او ظهور عوامل.

۴ - د اخوند درویزه او روښان دمخالف علتونه.

۵ - د اخوند درویزه آثار او تالیفات.

۶ - د اخوند درویزه دمکتب پیروان.

۷ - د اخوند درویزه او روښان د فنی نثرمقایسه.

۸ - په پښتو ادبیاتو کې د درویزه او دده د کورنی مقام.

محترم محمد اسمعیل سرېن په دغو موضوعاتو باندې علمي کار کړي دی. دموضوعاتو په منځ کې چې کوم جریان راغلی دي هغه طبیعی او منطقی بڼه لري. د پوهانو قولو نه یې رانقل کړي دي خو یوازې په نقل یې اکتفا نه ده کړې بلکې د قضاوت نه یې کار اخیستی دی او څه چې حق ورته ښکاره شوي دی هغه یې تایید کړي دي.

اوس دهر فصل خلاصه او لب لباب دلته وړاندې کېږي.

په لومړي فصل کې د اخوند درویزه نسب ښودل شوی، دده په نامه کې غور شوی دی. د سکونت ځانونه یې ښودل شوي دي. استادان او تحصیل درجه یې ښودل شوی ده.

د سید علی غواص ترمذي سره یې دمعرفی او پیری او مریدی سلسله بیان شوې ده او د ژوند نور مختلف حالات یې په ګوته شویدي. ددې فصل په اخر کې دا سې جملې راغلې دي: اخوند درویزه مومن، حنفي مذهب او پښتون و، په طریقت کې د وحدة الشهود په خوا دی. ده په پښتو، فارسی او عربی ژبو کې لیکل کولای شول.

په دوهم فصل کې د اخوند دوریزه د عصر سیاسي، اجتماعي او فرهنګي څیره څېړل شوې ده. او پوره رڼا وربانددې اچول شوې ده. په دغه وخت کې په هند کې د پښتنو د حکومت کمبله ټوله شوې وه او جلال الدین اکبر چې یو محیل شخص و د استبداد په کرسی ناست و، په دغه وخت کې زیاتره پښتانه چې پخوا یې په هند کې جایدادونه او منصبونه لرل د ګورګانیانو د فشار له امله یې هغه پرېښودل او زیاتره سرحدونو ته راغلل چې پیرروښان هم په سرحدونو کې اوسیده. په دغه وخت کې پښتنو سره دومره ظلم کیده چې پیر روښان په خپلو سترګو ولیدل چې د مغلو حاکمانو یوه پښتنه میرمن ونیوله او ددې وېښتان یې د ژرندې دپله سره وتړل چې ژرنده په ګرځیدله نو هغه میرمن به هم ورسره چورلیدله. دلته پیرروښان په غورځنګ راځي مګر اخوند درویزه یې پښې وهي. دغه اخ و ډب د پښتنو په ضرر تمامیږي خو یوازې پښتو ژبه یکې رشد او ترقي کوي. دواړه متخاصمې ډلې پښتو ادبیاتو ته

د وسلې کار اخلی، پښتو د وینا، خطابې منبر او کتاب ژبه شوه او پوره آثار او ادبیات پکی ولیکل شول. که یوه ډله خیرالبیان په پښتو لیکی هغه بله بیا مخزن الاسلام په پښتو لیکی او په نتیجه کې پښتو په دغه وخت کې د تحریري ادب ژبه ګرځی، وده او انکشاف کوي. خلاصه دغه عصر د ګډوډی، استبداد او د مذهب نه د بدې استفادې عصر وُ او تبلیغ پکی زیات اغیزمن وُ.

په دریم فصل کې د اخوند درویزه دتبارز علل په ګوته شوي دي. دا علتونه ډیر دي خو غټ پکی دادي.

۱ - د مغولی حاکمانو په وخت کې استبداد نهایت درجې ته رسیدلیوُ. په هند کې دمیشته پښتنو د اراییګانی لوټ شوي وې. د ازادو قبایلو نه عنعنوي ازادي اخیستل شوې وه یا په خطر کې وه یا ورته احترام نه کیده او د پښتونخوا ټوله سیمه اضطراب، نا ارامی او بحران نیولې وه. نو ددې د پاره چې دغسې یوه سیمه اطاعت ته غاړه کیږدې قوي تبلیغ ته ضرورت وُ. هماغه وُچې ددغه تبلیغ د پاره د پردې تر شا سید علیترمذي وټاکل شو او په ښکاره اخوند درویزه ډانګ را اخیستی وُ د اولس احساسات یې غلی کول. د پادشاه (اولوالامر) اطاعت یې لازم ګاڼه او مخالفین یې تکفیرول.

۲ - اخوند درویزه ددې د پاره منځ ته راغی چې روښانی نهضت چې دتیري او فساد په مقابل کې روان وُ هغه غلی کړي او دغه پښتون پخپله په پښتنو وټکوي او پښتانه بیګاره کړي. په دې لارکې درویزه تشویق کیدلو. شهرت ورکول کیدلو او مخالفین وربانديې ځپل کیدل. نو که روښان نه واي درویزه به دومره دشهرت معراج ته نه واي رسیدلی او که خیرالبیان نه واي

مخزن به په پښتو نه واي لیکل شوي او نه به د درویزه آثار لاس په لاس ګرځیدل.

۳ – د یو متنفذ روحاني (پیر بابا) له خوا په څلورو طریقو کې د اخوند درویزه ماذون کیدل دا هم دده د شهرت اوتبارز سبب شو.

۴ – محلي فیوډالانو، ګمارل شویو جابرو حاکمانو او د پښتنو قبیلو ځینو تفوق طلبانو درویزه ته د تبلیغ زمینه برابروله او هر راز مساعدت یې ورسره کاوه او همداسې نور علتونه ښودل شوي دي.

په څلورم فصل کې د پیر روښان سره د اخوند درویزه دمخالفت علتونه څرګند شوي دي. دلته په دې فصل کې زیاته څیړنه شوې ده او غور او تحقیق منځ ته راغلی دی او د ټولو هغو پوهانو نظریات راوړل شوي چې په دې موضوع کې یې لیکنې کړي دي. دا یو په زړه پورې ګټور بحث دی چې ډیر معلومات وړاندې کوي او نوې ټکي او ګټور بحثونه لري.

په پنځم فصل کې د اخوند درویزه آثار او تالیفات معرفي شوي. هر اثر یې ځانله ځانله ښودل شوی دی خو په دې افسوس ښکاره شوي دي چې دغه آثار په اصلي بڼه نه دي پاتې شوي، ګوتې پکې وهل شوي دي او تحریفات منځ ته راغلي دي. دا یو معلوماتي بحث دی.

په شپږم فصل کې د اخوند درویزه پیروان او دده سبک ښودل شوي دي. سبک یې شپږ خصوصیتونه لري او پیروان یې تر ۱۲ هجري قمري پیړۍ پورې موجود وو. پیروان یې یوازې کورنۍ نه ده بلکې نورو خلکو هم ددغه سبک ملاتړ او تقلید

کړي دي. په دې فصل کې د درویزه د سبك او مکتب ۱۵ تنه د خپلو آثارو سره معرفي شوي دي او دا دروند کار دی.

په اووم فصل کې طبیعي او فني نثر تفریق شوي او ښودل شوي دي او په فني نثر کې بیا د درویزه نثر په خاص ډول غندل شوي دي ځکه ده دروند، اوږد او مکرو نثر لیکه. روښان هم فني نثر لیکه او ددغه نثر ایجاد ګرو مګر تر درویزه یې نثر غوره و. دلته په دې فصل کې د روښان او درویزه د دواړو د فني نثر نمونې راوړل شوي او مقابل شوي دي. دلته په دې فصل کې د روښان او درویزه فني نثر د سلیمان ماکو د طبیعي او مرسل نثر سره هم مقایله شوي دي.

د اتم فصل لنډیز په دې توګه دی:

لسمه هجري قمري پیړۍ د پښتنو په تاریخ او ادب کې یو خاص مقام لري. په دغه وخت کې د روښان پیر په مشرۍ یو فکري حرکت منځ ته راغی چې دتبلیغ او ادب له لارې یې د خپلې نظریې بنسټونه ټینګول. دې حرکت د پښتنو په سیمه کې پلویان وموندل چې په دوي کې ځیني عالمان او ادیبان هم شامل وو. دوي هم د خپل پیر غونډې په پښتو آثارو لیکل. ولې له بده مرغه پخپله د پښتني قبیلو له منځه ځیني متنفذ عالمان راولاړ شول او د روښاني نهضت په مقابل صف کې ودریدل. دوي هم دتبلیغ او ادب له لارې د روښاني تبلیغ او ادب مقابله کوله. دلته مقصد دادي چې لوستونکي پوه شي چې دوهمې ډلې د خپل مرام د سرته رسولو د پاره ځومره پښتو آثار ایجادکړي دي او دغه آثار زمونږ د ژبې د ادبي تاریخ په مطالعه کې څه مقام لري. دلته په دې فصل کې د درویزه

د کورنی آثارو ته په پښتو ادب کې څورلس ارزښتونه ورکړي شوي دي چې هر ارزښت ځانله مزیت اوخصوصیت لري.

د ښاغلی سړبن دا اثر عادي اثرنه دی. نوښتونه هم لري او نوښتونه یې دادي:

۱ – تر اوسه پورې په ټوله لره او بره پښتونخوا کې د اخونددرویزه په باره کې ددې اثر غوندې بل کوم جامع اثر نه دی لیکل شوي.

۲ – د اخوند درویزه او روښان د فني نثرونو مقایسه او په دغه مقایسه کې د روښان اولیت ثابت شوي دی.

۳ – تر اوسه پورې دا مشهوره او منظوره وه چې اخوند درویزه په ۱۰۲۸ هـ ق کال کې مړ شویدي مگر ښاغلی سړبن د دلایلو او د اسنادو له مخې دا ثابته کړه چې اخوند درویزه په ۱۰۲۸ کال کې مړ شوي دی چې دا د درویزه په حالاتو کې یو نوښت دی.

۴ – سړبن لومړی محقق دی چې داخوند درویزه په باره کې له شوروی منابعو نه هم استفاده کوی او په ډیرو ځایونو کې د خپل تیزس اثبات د پاره د پروفیسر اسلانوف په قولونو تکیه کوی.

۵ – مشهوره داده چې تقریباً د یوې پیړۍ نه وروسته د روحانیونو، فیوډالانو او دمغلی طاقت په گډ تعاون سره د روښانیانو د ازادۍ نهضت غلی شو مگر محترم سړبن په خپلو څیړنو کې دا حرکت غلی نه بولي بلکې لیکی تر روښان وروسته خوشحال خان. میرویس نیکه احمدشاه بابا دا نهضت تعقیب کړاو په لره پښتونخوا کې د باچاخان په مشرۍ

خدایي خدمتګارانو دغه نهضت ته دوام ورکړی دی. داسې فکر په خپل ذات کې یو نوي کاردی.

ددي پروژې او ددي اثر ګټې:

۱ – ددرویزه دکورنۍ د ادبیاتو سمه زده کړه د روښاني ادبیاتو اود روښاني نهضت په پیژندنه کې زیاته مرسته کولای شي ځکه دا قاعده ده چې (الاشیاء تعرف باضدادها).

۲- د پښتو ادب په تاریخ کې ددرویزه دکورنۍ د ادبیاتو تاریخ پوره روښان نه دی. ددې اثر په برکت به د پښتو ادبیاتو داا ړخ هم روښانه شي او نوي شیان به منځ ته راووځي.

۳ – د درویزه د ادبیاتود څیړلو په ترڅ کې دا خبره سپیئیږي چې ده ، پښتو نه لیکله سره ددې چې پښتون وُمګر د روښان له کبله ده په پښتو قلم پورته کړ او دا د پښتنو په نزد دده په اعتبار او محبوبیت سخت ګوزار دی او پیرروښان ته افتریته او محبوبیت ورکوی او د اوسني نسل د پاره عبرت دی.

۴ – ددغې څیړنې نه معلومیږي چې که څوك علم د پردیو د سیاست دپاره استخدادموي هغه به همدغسې په اذهانو کې وهل کیږي لکه اخونددرویزه. په همدې مناسبت استاد اسلانوف لیکلی دي: (که اخوند درویزه د پښتنو په سیمه کې سیاسي هدفونه په مخ نه بیولی نو دی به د یو متشرع عالم په حیث د ډیرې ستاینې مستحق وُ.

محترم سرېن دا خپل تیزس ډیر اوږد لیکلی وُ او ډیر کار یې کړي وُ مګر څرنګه چې ځینو ځایونو دموضوع سره پوره اړخ نه لګاوه نوموئر هغه برخې ورنه حذف کړې او ضروري شیان او د موضوع سره نژدې مواد مویرېښودل. دا کتاب به په ظاهر کې وړوکي وی مګر محتوي یې ستره ده.

(صغر حجمه - کبر علمه). کتاب په روانه او عام فهمه ژبه لیکله شوی دی تعقید او پیچلی جملې نه لري.

د سرېن په ښه سرېتوب، شخصیت او اطاعت کې زه نه ګرېږم ځکه هغه هرچاته معلوم دی. یوازې دومره وایم چې دی د بل دپاره خپل ضروري کارپرېږدي او د دولت په ټولو اجتماعي کارونو کې ګډون کوي. دا هم باید ووایم چې ددې پروژې په لیکلو کې مونږ سره محترم زلمی هیوادمل مرسته کړې ده، موادیې راته پیداکړي. مشورې یې راسره کړې دي او نور لازم کومکونه یې کړي دي چې مونږ ورته د زړه له اخلاصه کورودانی وایو.

ددغو پورته ټولو خبرو په نظرکې نیولوسره زه د یو لارښود استاد په حیث دا وایم او په دې عقیده یم چې محمد اسمعیل سرېن ددې خپل کار په بدل کې د سرمحقق دمعاون د رتبې نه د سرمحقق رتبې ته په ښه شان دترفیع مستحق دی.

محمد اکبر معتمد

# تقریظ

## په پښتو ادب کې د اخوند درویزه او د ده دپیروان ادبی مقام ته یوه کتنه

**په پښتنی فرهنګ باندې د مخزن اغیزه:**

زه چې د لومړنی ښوونځی د پنځم او وروسته د شپږم ټولګی شاګرد وم په هغه وخت کې مې د درسی کتابونو ترڅنګه ځینی نور کتابونه هم په ډیر شوق او مینه لوستل. دغه کتابونه ټول په برتانوی هند کې چاپ شوی وو. کتابونه په یوه کوري (kwori) کې اینښودل شوی او له چت نه راځوړند وو. په دغو کتابونو کې د حضرت علی جنګنامه، د رحمان بابا دیوان، رشیدالبیان، او مخزن زما د پاملرنې په محراق کې واقع شوی وو. جنګنامه به مې په غاړه (آهنګ) ویلې او دکورنی غړو او

دهمسایه کورونو لویو ورو به په شوق سره اوریدلې. په مخزن چندانې نه پوهیدم خو یوازې د بایزید قصې به خوند راکاوه او زما په ذهن کې به یې دحیرت او نفرت ګډ احساس را پاراوه. د کتابونو د پیدا کولو د پاره به چې د کومو خپلوانو یاد پلار داشنایانو کورونو ته تلم هلته به مې هم د مخزن په کتاب سترګې لګیدې

په دې وروستیو وختونو کې چې کله په قلمي نسخو پسې ګرځیدلی یم د رحمان بابا د دیوان او مخزن نسخې مې تر نورو نسخو زیاتې لیدلې دي او له دې څخه داسې ښکاري چې د اخوند درویزه مخزن په پښتني فرهنګ باندې زیاته اغیزه درلوده او په پښتو ژبه د فقهې د یوه معتبر کتاب په توګه استفاده ورځنې کیده. د خوشحال بابا په قول، یوسفزیو پر مخزن باندې د قرآن اواحادیثو په اندازه عقیده درلوده لکه په (سوات نامه) کې چې وایي:

*(میان نور) وې چې اخون زمونږ امام دی*
*درست مخزن پرې نازل شوی په الهام دی*
*په مخزن باندې چې بد وایي کافر دی*
*د کافر قتل په شرح معتبر دی*
*په ویلي د درویزه عقیده څومره؟*
*لکه عین په آیت، په حدیث هومره*

افضل خان خټک په (تاریخ مرصع) کې د خپل نیکه خان علیین مکان انتقادونه احساساتي ګڼلي دي.

ددغو یادونو څخه دوه مهم ټکي رابرسیره کیږي. لومړی دا چې اخونددرویزه په پښتني فرهنګ کې د یادونې وړ مقام

لري، په تیره د مذهبي عقایدو په برخه کې پرپښتنو باندې دده تبلیغاتواثر پوره مشهود او محسوس دی. دوهم تکی دادی چې لاتر اوسه پورې د اخون درویزه د شخصیت په باره کې قلمي شخړې رواني دي. ځیني یې د اخوندرویزه بابا رحمت الله علیه په اوصافوستایي او ځیني یې د هغه وخت د مغلي دولت جیره خوار بولي. د تاسف خبره داده چې د اخون درویزه په باب اکثرې لیکنې دمخکینی موضوع ګیری پراساس بنا شوي دي، دعینیت خوښوني (Objectivity) روحیه پکی نه لیدل کیږي.

## ددغې پروژې ارزښت:

ددغې اوسنی پروژې لیکوال زیار ایستلی دی چې له یو اړخیزتوب، عندي تمایلاتو، اومخکینی موضوع ګیری څخه ځان لیری وساتي او د یوه ربښتوني څیړاند په توګه، د اخوند درویزه ادبي مقام دهغه وخت دټولنیزو، اقتصادي، او فرهنګي شرایطو سره په عیني او منطقي ارتباط کې وڅیړي، دسرمحقق معاون محترم سرېن د ابجکتیف علمي متیود په پیروی پر معتبرو او ثقه شواهدو استناد کوی. فرهنګی پدیدې له نورو پدیدو سره په ارتباط او دانکشاف په حالت کې ګوری، دخپلی موضوع په باره کې مختلفی نظریې راوړی هغو ته په انتقادي نظر ګوری او بیاخپل قضاوت اونظر وړاندې کوی. په دې اساس، دمحترم سرېن دڅیړنې یوعمده صفت دادی چې منابع هم کره کوی او د هغود صحت او سقم له معلوماتو وروسته، یوازې پرموثوقو معلوماتو تکیه کوی.

## د پروژې ديزاين:

(پــه پښــتو ادب کــې د اخونــد درويــزه او دده د پــيروانومقام) په نامــه علمــی، تحقيقی پــروژه د يــوه ضــرورت پــه اســاس تــاکلی شــوې ده. د پــروژې ارزښــت او اهميــت پــه ســريزه کــې (چــې مولــف يــې دســرخبرې بولــی) ښودل شــوی‌او د پــروژې د انــتخاب دلايــل هــم بــيان شــوی دی. کــتاب پــه اتــو فصــلونو کــې لــيکل شــوی او د ترتيــب پــه بــرخه کــې مــنطقی تسلســل تــه پاملــرنه شــوې ده. څــرنګه چــې د اخونــد درويــزه مقــام دده د پــيروانو پــه نســبت لــوړ او متــبارز دی لــه دې املــه د پــروژې عمده برخه پخپله اخوند درويزه ته وقف شوې ده.

د کــتاب پــه پــای کــې نتــيجه او ماخذونــه هــم ښــودل شــوی دی. پــه دې اســاس، د پــروژې ديزايــن(طــرح) د مــنل شــوو علمــی نورمونــو سره سمون لری.

## د پروژې ارزيابی:

د ســرمحقق معــاون محمــد اســمعيل ســرېن يــوه داســې مهمــه او جالــبه پــروژه تــاکلې ده چــې پخــوا پــه دې بــاره کــې ځانګړی اثــر نــه دی ليکل شوی او لــه همدې امله ابتکاری پروژه ګڼل کيږی.

ددغــه کــتاب دتحقــيق ميــتود پــر علمــی موازيــنو مــتکی دی او داد بــــی تــــاريخ ليکــــنې د اســــلوب اساســــی او ضــــروری عناصرپکی رعايت شوی دی.

د ليکــنې ســبك يــې خــوږ او روان دی، اغــلاق، اطــناب، او زوايــد پکــی نــه لــيدل کــيږی. د تنقــيط اصــول پکــی مــراعات شــوی دی. د پــــروژې د بشــــپړولو د پــــاره لــــه (۳۳) مهمــــو مــــنابعو او داصلی‌موضــوع پــه ارتــباط لــه لومــړی لاس (اوريژنــيال) مــنابعو څخه استفاده پکی شوې ده.

**نتیجه:**

ددغو پورتنیو یادونو په نتیجه کې د معاون سرمحقق محمد اسمعیل سړبن علمی، تحقیقی پروژه ابتکاری او ګټوره پروژه بولم او زما په عقیده، محترم سړبن په ښه شان سره د سرمحقق رتبې ته د ترفیع مستحق دی.

*په درناوی*

داکادمیسن کاندید محمد صدیق روهی

۱۳۶۶/۵/۱۸

# تقریظ

اخوند درویزه بن گدای در حوالی سال ۹۲۰ هجری قمری ۱۵۱۴ میلادی از مادری بنام قراری بنت نازو خان بن ملك داود ، باحتمال، در یکی ازقرای اسماعیل خیل زاده شد.مبادی دروس اسلامی را نزد ملا مصر احمد از اولاد سید محمود ولی بخاری فراگرفت و بعداء به هند ، که در آن زمان مرکز علوم اسلامی بود ، به طلب علم رفت و ظاهراء از محضر ملا جمال الدین هندوستانی استفاده کرد و در حلقه ارادت سیدعلی غواص ترمذی (که پدرش سید قنبرعلی بن سیداحمد یوسف از خویشاوندان ناصرالدین همایون (بار اول ۹۳۷ = ۱۵۳۰ تا

۹۴۷ = ۱۵۴۰ و بـــار دوم ۹۶۲ = ۱۵۵۵ تـــا ۹۶۳ = ۱۵۵۶) بود در آمد)[1]

جزئـیات تحصـیل وی در زادگـاه خـودش در اراضـی پښـتون نشـین و هـند بدرسـتی معلـوم نیسـت امـا از آثـاروی بخصـوص مخـزن الاسـلام معلـوم میشـود کـه از علـوم اسـلامی بهـره وافـر داشـته اسـت، زیـرا در ایـن کـتاب مـراجع معتـبر اسـلامی را چـون کـتاب العقـاید ابـو حفـص نجـم الدیـن نصـفی مـتوفی ۵۳۷= ۱۱۲۱) (۲) و قـصـیده بـرده شـرف الدیـن محمـد بـن سـعید بصـیري (مـتوفی ۶۹۴ =۱۲۹۴) (۳) خلاصـه مـلا کـیدانی کـه از اهـم کتـب درسـی در کـلام و عـرفان وفقـه مـی باشـد باکمـال مهـارت جـا داده اسـت. بخـش اول کـتاب در قرائـت رسـاله کـه تالیف خود اخوند است مهارت اورا در زبان شناسی میرساند.

اخونـد درویـزه قـسـمت زیـاد عمـر طولانیخویشـرا. کـه حـدود ۱۰۸ سـال بـود (خزیـنه الاصـفیا) تـاریخ وفـات اورا سـال ۱۰۴۸ = ۱۶۳۸ مـی نویسـد) درتبلـیغ علـیه بایـزید انصـاری بـن عـبدالله[2] معـروف بـه مـیا روشـان و پـیر روشـان (کـه از مـتفکران و رجـال بـزرگ عـرفانی زمـان خویـش بـود او و پـیروان احفـادش در مـدت یك قرن در قیام بزرگ علیه گورگانیان دست زد) گذرانید.

تعلـیم و مـبارزه پـیرو روښـان و تبلـیغ مـتقابل اخونـد درویـزه موجـب تالـیف و تدویـن کتـب و رسـایل و دواویـن شـعر درزبـان

---

(۱) ملاقات اول اخوند درویزه با سیدعلی ترمذی شاید بین سال های ( ۹۶۰-۶۲= ۱۵۵۲-۵۴) صورت گرفته باشد.

(۲) بایزید روښان در سال ۹۳۱ – ۱۵۲۳ ، ۱۵۲۴ در جالند هر از بلاد پنجاب به دنیا امد و در ۹۸۰ هجري = ۱۵۷۲ میلادی وفات نمود.

پښتو گردید و آثار ارزشمند ادبی عرفانی و دینی در این زبان بوجود آمد و بر گنجینه ادب پشتو آثار با ارزشی افزوده شد. آثار درویزه ننگرهاری از بیش بها ترین آثار ادب قدیم پشتو شمرده شده است.

بحث محمد اسماعیل سړبن موءلف ارجمند رساله (په پښتو ادب کې د اخوند درویزه مقام) که جهت ترفیع به رتبه سرمحقق (سر څیړونکی) تالیف شده است تحلیلی است از این جنبش ادبی و تعین مقام آن نهضت در زبان پشتو.

این رساله مشتمل است بر مقدمه. هشت فصل و فهرست مراجع به این تفصیل:

۱) ترجمه حال اخوند درویزه.

۲) وضع سیاسی، اجتماعی و فرهنگی عصر اخوند درویزه.

۳) عوامل ظهورو تبارز اخوند درویزه.

۴) علت های مخالفت اخوند درویزه و پیر روښان

۵) آثار و تالیفات اخوند درویزه

۶) پیر و ان مکتب اخوند درویزه.

۷) مقایسه نثر فنی اخوند درویزه و پیر روښان.

۸) مقام اخوند درویزه وخانواده‌ٔوی در ادبیات پشتو.

در مقدمه، چنانکه در انشای رسایل علمی رسم است، موءلف محترم نظری به کار گذشتگان خویش در این بحث داشته و لزوم تحقیق تازه را درباره اخوند درویزه و پیروان وی و مقام آثار ایشان در ادبیات پشتو بیان نموده است.

از این مقدمه معلوم می شود که مطالعه و تحقیق وی از اغاز بروش تحقیقات علمی معاصر بوده است. او اولاً از انچه دیگران درباره اخوند درویزه نوشته اند خود را مطلع

ساخته وبعداً به مطالعه ماخذ اصلی آثار درویزه و پیروان وی پرداخته است.

چنانکه گفته اند رجال غالباً زاده محیط خویش می باشند مطالعه وضع سیاسی، اجتماعی و فرهنگی زمان اخونددرویزه در این رساله برای شناسایی کامل اندوخته های ذهنی وفعالیت های سیاسی وعلمی اخوندحتمی است.

دلچسپ ترین قسمت رساله، بنظر من فصل پنجم آن است. در این فصل موءلف سعی نموده است تحلیلی را از محتوای آثار اخونددرویزه بیارد از مطالعه این فصل متوجه می شویم که معاون سرمحقق محمداسماعیل سرین آثار اخوند درویزه را بدقت مطالعه نموده و در پرتو نظر استادان ارجمندی چون عبدالشکور رشاد محتوای آنان راتحلیل نموده است.

کار معظم و اصلی‌نویسنده ارجمند در تالیف این رساله فصل اخیر و هشتم آن است. قرن ده هجری از اعصار مهم نهضت فکری و ادبی در تاریخ ادبیات پشتو می باشند، در این عهد چنانکه گفته شد مبارز، مفکر، مصلح و موءلف نامور بایزید روښان برخاست. او در ادب پشتو مکتب جدید نثر مسجع را بنیاد گذاشت و در ترتیب و تنظیم الفبای پشتو حصه گرفته. پیر روښان آثاری چون خیر البیان، صراط التوحید، مقصود الموءمنین، فخر الطالبین، حالنامه، مکتوبات، رساله، رسم الخط پشتو و غیره را به میراث گذاشت.

قیام اخوند درویزه و پیروان او علیه بایزید انصاری روښانی موجب تالیف آثار مهم گردید. فصل هشتم این رساله بیانی است در فکر این آثار و ارزش آن در ادبیات پشتو.

پس باید گفت که: په پښتو ادب کې د اخوند درویزه او دده د پیروانو مقام) تالیف - معاون سرمحقق محمداسماعیل سړبن یحیث مجموع، تحقیقی است. در ترجمه حال و بیان آثار اخوند درویزه و ارزش آن آثار در ادبیات پشتو. این تحقیق بر مبنای علمی استوار است و صورت تالیف آن منسجم میباشد. موءلف در تدوین مطالب ازکتب و ماخذ معتبر استفاده نموده و اثر خویشرا به عبارات روان تحلیل داشته است.

چون قبلا چنین رساله ای به صورت منظم در یك مجموعه در بارهء اخونددرویزه و احوال و آثار وی ومقام کتب و رسایل او و پیروانش در ادبیات پشتو. نوشته نشده است و در تالیف این رساله دقت و تحقیق لازم بعمل آمده است. من آنرا تحقیقی و ابتکاری و برای ترفیع برتبه سرمحقق در کدر اکادمی علوم ج. ا. کافی میدانم و ترفیع نویسندهء ارجمند آنرا به ان مقام علمی توصیه میکنم و توفیق بیشتری برای وی درتحقیقات علمی میخواهم.

کاندید اکادمیسن

میرحسین شاه

۶۶/۶/۲

# تقریظ

رساله معاون سرمحقق محمد اسماعیل سرېن را تحت عنوان اخوند درویزه و مقام ادبی او مرور و مطالعه کردم. نویسنده محترم درنگارش شرح حال و آثار اخوند درویزه همچنین زندگینامهء نامه پیروان او و مقایسه سبك آنان، زحمت فروان کشیده و از منابع معتبر استفاده کرده است. در تصنیف و ترتیب ابواب رعایت اصول تحقیق شده و هر یك از موضوعات دقیقانه بررسی و تحلیل گردیده است.

سبك و نگارش نویسنده روان و شیو است. ازآنجا که تاکنون اثر مفصل تحقیقی و تحلیلی در تراجم احوال آخوند درویزه و پیروان او نگاشته نشده، لذا این نکته بر تازگی و اهمیت اثر می افزاید. ضبط نادرست بعضی کلمات که البته ناشی از تایپ است ایجاب تصحیح را میکند. درمورد موازین نقطه گذاري باید دقت بیشتر مبذول گردد. این اثر برای ترفیع وی ازرتبه معاون سرمحقق برتبه سرمحقق کافی بنظر می رسد.

توفیق نویسنده محترم را خواستارم.

اکادمیسین دکتور جاوید

# سر خبرې



د پښتوادبیاتو په تاریخ کې ځینې کورنۍ شته چې مشرانواو د کورنۍ نورو غړو یې په پښتو ژبه ځینې آثار لیکلي دي، دغو کورنیو بیا دخپل نفوذ له امله په خپله سیمه کې هم ځینې ادیبان او شاعران له ځان سره مله کړي دي، چې په عام ډول موږ ددغو کورنیو له بدل څخه د پښتو ادبیاتو په وده او انکشاف کې سترګې نشو پټولای.

له دغو کورنیو څخه یوه کورنۍ د بایزید روښان کورنۍ ده، دوهمه د اخوند درویزه کورنۍ دریمه د خوشحال خان

کورنۍ، څلورمه د مياعمر څمکنی کورنی[۱] او په وروستيو وختونو کې د وکيل الدوله د کورنی يادونه هم شوې ده.[۲]

دا چې دغو کورنيو پښتو ادبياتو او پښتو ژبې ته څه خدمتونه کړي دي، د هغو په تفصيل سره د يادونې ځاي دا نه دی، مگر دومره بايد ضرور ووايو چې له دغو کورنيو څخه، د زياترو په باب څه مفصل کارونه شوي دي، لکه: د بايزيد روښان په باب مرحوم پوهاندحبيبی، مرحوم قيام الدين خادم مرحوم عبدالاکبرخان اکبر، عبدالقدوس قاسمی او ډيرو ختيځ پوهانو بيا په تيره مو تبروس گريگورويچ - اسلانوف څه کارونه کړي په خاص ډول په ۱۳۵۳ هـ. ش کال کې دپښتو ټولنې له خوا د روښان بين المللی سيمينار په دې برخه کې د کار ساحه لږ څه مفصله او وسيعه مطالعه کړه.

دغه رنگه د خوشحال په باب دمرحوم استاد کامل، مرحوم استاد حبيبی او د نورو ډيرو په لس گونو ختيځ پوهانو او په سلگونو پښتنو پوهانو کارونود پښتو ادبياتو د تاريخ دا برخه يو څه روښانه کړه.

د مياعمر څمکنی او دده د کورنۍ په باب اکاډيمسين عبدالشکور رشاد علمي کار د زياتې يادونې وړدي، مگر

---

(۱) ددغو کورنيو په باب پوهاند رښتين په خپله څيړنه ((پښتو پيژندنه)) کې يو څه تفصيل ورکړی دی د پوهاند رښتين دغه ليکنه د (پښتو څيړنې) نومی مجموعه کې چاپ شوې ده.

(۲) ددې کورنۍ په باب دکابل مجلې د ۱۳۵۶ کال په پنځمه گڼه کې يوه مقاله خپره شوې ده.

داخوند درویزه او دده د کورنۍ په باب څه مفصل او سره یو ځای کارتر اوسه زما له نظره نه دی تیر شوي، البته ځینو پوهانو لکه: پوهاند حبیبي، تقویم الحق کاکاخیل، اکاډیمسین رشاد، پوهاند رښتین څه کارونه کړی دي. په خاص ډول د اکاډیمسین د کاندید محمد صدیق روهي وروستی څیړنې د درویزه په باب د یادولو وړ دي، مګر دا څیړنې خو متفرقې دي او سره یو ځای شوې او منسجمې شوې نه دي.

د افغانستان دعلومو اکاډیمۍ دژبو او ادبیاتو مرکز د پښتو ټولنې د پښتو ادبیاتو د ډیپارتمنټ علمي مجلس داموضوع محسوسه کړې وه او دا یې لازم ګڼلې وو، چې په پښتو ادبیاتو کې اخوند درویزه او دده دکورنۍ ادبي مقام باید وڅیړل شي، او داموضوع د یوه تیزس په بڼه تهیه شي.

د ډیپارتمنټ علمي مجلس ددې موضوع، څیړل ماته راوسپارل. ماهم ومنل، که څه هم په دې برخه کې سره پیلي کار پخوا موجود نه وه، چې زه د هغه له مخې خپل کار تصنیف او پرموضوع اضافي کار وکړم. ما په موضوع کې پخوانۍ ټول ترسره شوي کارونه سره راپیدا کړل او وروسته د اخوند درویزه او دده د پیروانو د آثار او د پیدا کیدو په لټه کې شوم. څه چې مې پیدا کولای شول هغه مې پیدا کړل وروسته مې ددغو څیړنو او آثارو په مطالعه او پرتلنه پیل وکړ، تر مطالعې او پرتلنې وروسته بیا د موضوع په لیکلو مشغول شوم.

ما دا تیزس په اتو فصلونو وویشه، چې عمده ټکي یې دادي:

۱) د اخوند درویزه شرح حال.
۲) د اخوند درویزه د تبارز عوامل
۳) د اخوند درویزه او روښان د مخالفت علتونه.
۴) د اخوند درویزه آثار او تالیفات.
۵) د اخوند درویزه داثارو محتوی او دده مکتب.
۶) دده پیروان.
۷) د اخوند او روښان د فنی نثر مقایسه.
۸) په پښتو ادبیاتو کې د درویزه او دده دکورنۍ مقام.

دا لوړ اته عنوانونه چې ما وښوول دکتاب د فصلونو د محتوی نماینده ګي کوي. په لفظی لحاظ به توپیرونه ولري، ځکه هغه عناوین ماهو بهو دلته نه دي نقل کړي. یوازې مفاهیم مې ترې اخیستي دي.

ما په لوړو یادو شوو موضوعاتو کې د شتو منابعو په رڼا کې او هم د اخوند درویزه او دده دکورنۍ آثارو ته په پاملرنه بحث کړي دی او دغه اثرمې ځینې ترتیب کړي دی. چې د اخوند درویزه او دده د کورنۍ په باب یو لړ منسجم معلومات وړاندې کوي. کله چې د پښتو ادبیاتو مفصل تاریخ لیکل کیږي، له دغه اثر څخه ددغه تاریخ په بشپړتابه کې استفاده کیدلای شي.

و من الله التوفیق

د سرمحقق معاون محمد اسمعیل سربن

# لومړی فصل

## داخوند درویزه پېژندګلوي

### اخوند درویزه څوک و:

د پروفیسر تقویم الحق لیکلی شوې، مقدمه چې د درویزه د مخزن الاسلام د پېښور چاپ په سرکې راغلې ده لیکي؛ چې د اخوند درویزه ننګرهاری نسب په اووم پښت ترکو ته رسیږي.

دده په نیکونوکې لومړی سړی چې له لغمان ته ننګرهار ته راغلی و، جیون نومیده، چې د جنتی زوی و.

جنتي د پلار له ډډې ترک و او د مور له اړخه د بلخ له سلاطینو سره تړلی و.

جنتي چې کله د لغمان نه ننګرهار ته ورسیدو سملاسي په مهمند زوکی ډیره شو، څه موده پس یې دمهمندزو سره زړه بدي راغله.

درویزه لیکي چې ((د (جیون) ډیره درنه سپینه ږیره وه، یوځل یې ټولومهمندزو ته میلمستیا کړې وه. کوم زلمي په ټوکه یا په بدنیتۍ خپل ناولي لاسونه دهغه په ږیره ومو ږل جیون دا ګستاخي تحمل نه کړای شوه او خپلو ماماخیلو ته یې فریاد یوور د هغوي په مدد یې دا علاقه دمهمندزو نه پاکه کړه او خپله بادشاهي یې پکې خوره کړه [1] (...))) د جیون زوي (مته) و، د مته زوي احمد او د احمد زوي درغان له پاپینو سره پاتې شو، او پاپینیو دی په خان پورې ټینګ [2] ونیو.

پاپینی چې په ننګرهارکې اوسیدل نو د درغان زوی سعدي هلته په ننګرهار کې وزیږیدو.

کله چې په کال ۸۸۰ هـ کې د یوسفزیو قبیله دمیرزا الغ بیګ نه خفه ننګرهار ته راغلل نو سعدي هم دهغوي سره (د یو سفزو سره) د دعاګوئی [3] په توګه ملګری شو. وروسته بیا کله چې یو سفزي د خیبر په لار راکوزیدل نو دی هم ورسره راکوز شو او د جنګ جګړې او ښویدو په دې ټوله دوره کې،د هغوي سره و. د کال ۹۲۰ هـ ۱۵۱۴ع شاوخوا د سوات او د بونیر فتح کولو نه وروسته کله چې شیخ ملي (رح) د مځکو ویشلو ته اقدام وکړه، نو سعدي یې ددې خدماتو او مشرۍ په انعام کې

---

(۱) مخزن (مقدمه د پېښور چاپ) پښتو اکیډیمی، ۱۹۶۷ . د تقویم الحق کاکاخیل په زیار پېښور، ۱۹۶۰

(۲) تذکره الابرار و الاشرار

(۳) تذکره ص ۱۳۵

پـه ډيـرش کسـو وشـميره او مـلـيزو کـې يـې دمـندوزو سـره برخه ورکړه.

نـو هسـې ښکـاري، چـې پـه اغلـب ګومـان سـره شـيخ سـعدي پـه هغـه زمانـه کـې د قـوم دملکـۍ حيثيـت درلـود. ولـې، چـې درويـزه هـم پـه دې هلکـه ليکلـي دي، چـې سـعدي دخـپل سـخاوت او عـبادت پـه وجـه پـه شـيخۍ او پـه پيشـوايۍ مشـهور و. يوسـفزو بـه يـې هـم عـزت کـاوه او دحاکمـانو سره بـه يـې هـم تلـل راتلـل وو او د دوارو ترمينځ به يې امن ساته.

څـه مـوده پـس پـه څـه خـبره امـير قودانـى د يوسـفزو نـه خفـه شـواو پـه دوي يـې يـرغل وکـړ. پـه دې جـنګ کـې څـه نـابلدو سـورو شـيخ سـعدي هـم، شـهيد کـړ او د هغـه زوی (ګدايـي) يـې لاس تړلـی بوتلـه، امـير چـې دی وپـيژاند او دده پـه حـال خـبر شـو نـو د ګدايـي د برکـته يـی تـول قـيديان پـه عـزت او احـترام خوشـي کـړل او بـيرته يې وليږل خو د مندوزو سره يې هډمات شو.

کلـه چـې بـيرته سـتنيده، شـيخ ګدايـی د ملـيزو بـل شـاخ د چغـرزو (اسـماعيل خـيلو)، قبـيلو سـره ملګـري شـو او د لسـو کسـو بـرخه يـې [1] وموندلـه د يوسـفزو سـره د شـيخ سـعدي پـه ملګرتـيا کـې ډيـر پاييـنی هـم، راکـوز شـوي وو. شـيخ سـعدي خـپل زوی (ګدايـي) تـه د پاييـنو لـه کورنـيو ښځـه واده وکـړ چـې د هغـې نـوم، پخـپله، اخونـد درويـزه (قـراري بنـت نـازو خـان بـن ملـك داؤد پـانی بـن ملـك بـابو بـن سـلطان قـران بـن سـلطان خواجـه بـن سـلطان تومـنا بـن سـلطان بهـرام بـن سـلطان کهـنجا بـن سـلطان بـندو بـن سـلطان جـرس بـن سـلطان جمـاد) لـيکلی دی. د نسـب سلسـله يـې سـکندر ذوالقرنين سره لګيږي.

---

(۱) تذکره ص ۱۴۷ پيښور، ۱۹۶۰، اخوند درويزه.

شیخ گدایی (د اخوند درویزه پلار) که څه هم تعلیم نه وکړي، خو د عالمانو سره یې مینه وه او همیشه به یې عالمانو ته د سترخوان غوړیدلی ساته[۱]

د پورتنیو څېړنو څخه جوته شوه، چې د اخوند درویزه پلار (گدایی) او نیکه یې شیخ سعدي او غور نیکه یې د رغان او څلورم پښت یې احمد او پنځم پښت یې متهٔ او په شپږم پښت جیون او په اوم پښت جنتی نومی سړي ته رسیږي.

د اخوند درویزه مور (بی بی قراره) ډیره پاکه او بزرگه ښځه وه څکه چې دي پخپل ژوند کې هیڅکله د تهجد و لمونځ نه و قضا کړي.

زمونږ د پورتنی خبرې مصداق د ارشاد الطالبین کتاب دی، اخوند درویزه پخپل تالیف ارشاد الطالبین کې دخپلې مور په باب داسې لیکي:

(یوه ورځ چې مې سهار د هغې مخ ته وکتل نو ښی سترگه یې بالکل شنه وه. پوښتنه مې ترې نه وکړه، چې مورې دا څه دي؟ وې تاته پته ده، چې زما پلار وو زاهد سحر خیز و) چې کله به په لمانځه ولاړه وم هغه سره به مې د تهجد ولمونځ کاوه. بیگاه مې ستا لور به غیږ کې وه، چې سهار راپاسیدم نو هغه په ژړا شوه، ورو ورو مې کراروله او سترگې مې پټې پټې کیدې. په دې حال کې مې یوه گوته ولیده او سړي مې ونه لیده. هغه گوته راغله او په سترگه مې رانوته او چا وویل پاڅه. څه سترگې پټې پټې کوې. څلورکاله ژوند دې نور پاتې دي.

---

(۱) ارشاد الطالبین ص ۳۲۰ اخوند درویزه، لاهور. ۱۳۳۵ هـ ق

څلورکاله پس، چې وفات شوه نو سترګه یې هغسې شنه وه [۱] هو، نه یوازې دا میرمن پاکه وه. بلکې اولاد یې هم له خدایه پاك غوښته او په هر لمانځه پسې به یې داسې دعا کوله: یا الله زما اولاد د شریعت په لاره او د انسانیت په خوي وساتې او کنه په وړوکوالی کې یې مرګ روزي کړې چې لا یې ګناه نه وي کړي [۲]

د یو داسې علم دوست پلار او د داسې دینداري مور په کورکې د (۹۴۰ هـ ۱۵۳۳ ع) کال په شاوخوا کې، اخوند درویزه دنیا ته سترګې پرانستې او پلار پرې د ګدای په مناسبت (درویزه) نوم کیښود.

څرنګه چې اوس هم په پښتنو کې ملنګ، کچکول، فقیر او قلندر نومونه عام او مروج دي نو ښایی چې په هغه زمانه کې به هم دا قسم نومونه لکه درویزه، ګدای او نور ډیر عام وو.

که څه هم ځینې پښتانه مؤرخین د اخوند درویزه د پاره بل نوم لتهوي، د مثال په توګه ځینې کسانو په دې لړ کې عبدالله، یا الله داد نومونه د اخوند درویزه له پاره ښوولی دي خو الله داد یاعبدالله د اخوند درویزه د یو زوی نوم دی او بل داچې، پلار. هیڅکله خپل نوم پر زوی نه ږدي.

اخوند درویزه. خپل ځان ته همیشه درویزه لیکلی دي او د هغه مشر زوی ملا عبدالکریم هم (چې د پلار له وفات نه وروسته خلیفه و) د خپل پلار نوم یې بې له درویزه څخه په بل

---

(۱) ارشاد الطالبین ص ۳۲۰.

(۱) ارشاد الطالبین ص ۱۶۱.

هېڅ نوم نه دي يادکړي، بلکې د القابو او ادابو په يوه لويه توټه کې دخپل پلار نوم داسې ليکي:

(ملك العلماء الراسخين، رئيس الفضلاء المتبحرين، تاج العرفاء الكاملين، زبده، الاصفياء الواصلين، سيف السنته و الشرليعه الغراء، ماحی البدعه والضلاله والهوري، استاد محقق و مربی مشفق و پدر مرفق المتضرع الی الله الباري، شيخ الاسلام و المسلمين شيخ درويزه ننګرهاري قدس الله سره العزيز)[۱]

نو د پورتنيو کرښو څخه معلوميږي چې اصلي نوم يې درويزه و، نه عبدالله يا الله داد ځکه که درويزه يې نوم نه وای او کوم بل نوم يې درلودی نو هرومرو به پورتنيو مفصلو کلمو کی به يوه هغه هم راغلی و.

دا چې اخوند درويزه په کوم کلي کې پيدا شوی و ددې سمه پته نه شی لګيداي او مونږ هم دلته اوچت او په قاطع توګه دده د زيږيدنې ځای نه شو ليکلی، خو داسې ښکاري چې دی د بونير په علاقه کې د اسماعيل خيلو په کليو کې يو کلی چې (چغرزي) نوميږي هلته ديره و په زلميتوب کې يې د ښکار سره علاقه درلوده پخپله اخوند درويزه په تذکره کې په زلميتوب کې دکوه جعفر په لمن کې د ښکار يادونه کوي[۲]

که څه هم پلار يې عالم نه و او درويزه هم په وړوکوالی کې د علم ضرورت احساسولای نه شو، خو د خدای ويره او داسلام د دين مينه يې په زړه کې د وړکتوب نه پرته وه. وروسته

(۱) تذکره ص ۱۵۷، اخوند درويزه، پيښور، ۱۹۶۰.

(۲) تذکره ص ۳۰۴

بیاکله چې دخبرو کولواو پوهیدو شو، نودورځې له خوا په روژه او په شپه کې دخدای په عبادت ځان عادت کړي و. همیشه به یې اودس ساتلو او هر وخت به یې د خدای د امر او نهی خیال په زړه کې و تر دې چې ورځ په ورځ یې د دین اهتمام او د زړه صفایي ورته زیاتیده.

پروفیسر تقویم الحق د مخزن د کتاب د سریزه لیکونکی او هم سید رسول رسا د پیښور د پوهنتون د پښتو اکاډیمی پخوانی ډایرکټر دمخزن شپږم مخ کې لیکي کله چې درویزه بلوغ ته رسیده، نو هغه هرڅه یې حاصل کړي وو څه چې یې حاصلولاي شول هغه یې تر لاسه کړي وو.

په اغلب ګومان دنوموړو دوو محترمو لیکوالو د کلام ادعا د درویزه د لیکل شوي تذکرې په استناد ده.

اکثر خلك کشف او کرامت، بزرګی ګڼي او بزرګی، کشف او کرامت بولی نو کله چې درویزه ته د نفس تزکیه د روح صفایي او د باطن او د زړه روښنایي‌حاصله شوه نو پرده باندې دکشف دروازې، پرانستلې شوې او خلکو دده بزرګي ومنله.

درویزه پخپله په تذکره کې لیکي، چې یو ځل د بونیر غرونو ته د ښکار په نیت راوتلی وم د جعفر د غره په خوا کې د ښکار په انتظار ناست وم، په لاسونو کې مې لینده راښکلې وه خو زړه مې په نورو نورو فکرونو اخته و. ناڅاپه مې یو دوه کسه ولیدل ملا تړلی، سپینی ږیري همسا، په لاس هغوي دواړو راته وویل: ((احسن الخالقین رب العالمین)) او بیا ورك شول. درویزه وایی چې مې داجمله واوریده نو مې یاده کړه، خو پرې پوه نه شوم چې دا څه دی.

کله چې د ښکار نه کورته راغلم نو خپل عالم مشر ملا مصراحمد ته ((چې د سید محمود ولی بخاري د کورنی له اولادې څخه و)) چې دا واقعه واورله. ملا مصراحمد راته وویل، چې بیگا ماهم یو هسې خوب لیدلی چې په تا اړه لري. خوب وینم چې ته یو لوي دریاب کې ډوب شوی یې. هر څو چې مې دریسې لاس پښې وهلې وروسته پاتې کېدم. ان تردې چې ته رانه ورك شوې. نوویلای شم چې زما خوب او ستا دا (واقعی) تعبیر یو دی نو هر کله چې تا دعلم کوښښ شروع کړ، پوه شه، چې داسې ځای ته به ورسیږې چې مونږ تول به درنه وروسته پاتې شو.[1]

د پورتنیو خبرو څخه جوتیږي، چې د علم په زده کولو کې ددرویزه یواځینی او لومړنی مشوق اومحرك ملامصراحمد دی.

دا به بهتره وي، چې د درویزه دعلم د زده کړې لومړنی ورځې، دده د تالیف کړې تذکرې په اسناد، دځو خبرو او جملو په ترڅه کې گرانو لوستونکو ته ولیکو. (په هغه لحظه کې زما والدې صاحبې څه میوه تحفه راوړله او ملامصراحمد صاحب راته په تخته کې د تهجي حروف ولیکل، داد ماپښین وخت و، ترماسختن پورې ما د حروف تهجی اوه تختې، ختمې کړې او ابجد مې شروع کړ چې د هغې په اخر کې احسن الخالقین رب العالمین لیکلی وو.

بیامې هره ورځ د قرآن تلاوت کاوه تر دې چې کال پوره کېدو نو ما قرآن مجید او یو څو کتابونه ختم کړی وو او خپله ملامصراحمد به راته د ځینو خبرو پوښتنه کوله دا په ما د

(۱) تذکره ص ۱۶۵ اخوند درویزه، پېښور، ۱۹۶۰

خدای فضل و چې څه بـه یې ویـل هغـه ټـول راتـه د حـافظې پـه طاقت یاد پاتې کیدل.(۱)

اخونـد درویـزه چـې د علـم خونـد واخیسـته نووروسـته یـې بـیا دملامصـر احمد ملازنگی پاپینی اوملا سنځر پاپینی پـه علومـو تـنده ماتـه نـه شـوه، دعلـم پـه تـلاش کـې هندوسـتان تـه لاړ چـې پـه هغه وخت کې هندوستان د علم مرکز و.

دهندوسـتان پـه عـالمـانو کـې یـې لومـړي د ملاجمـال الدیـن هندوستانی څخه دعلم په زده کړه پیل وکړ.

درویـزه پخـپله پـه تذکـره کـې د بخـارا د یـو سـفر ذکـر هـم کړیـدی چې غالباً بـه دده د هغـو ورځـو خـبره وی، چې پـه هند کـې دعلـم د زده کـړې د بشـپړېدو نـه وروسـته بـه بخـارا تـه دعلـم د حاصلولو په نیت تللی وي.

د اخونددرویـزه د ریاضـت او تقـوی جـوش د علـم حاصـلولو پـه دوران کـې هـم کمښـت او تقلـیل ونـه مونـد او د کـتابونو دمشـغولتیا سـره سـره یـې د ریاضـت، تقـوی اود سـلوك څخـه لاس وانه خیست او ددې لاړې نه غافله نه شو.

درویـزه پخـپله تذکـره کـې دهندوسـتان د طالـبانو او ملایـانو عملـی ژونـد ، د خـپل کـلام او بـیان پـه خاصـه شـیوه، هسـې ترسـیموي چـې د شـکایت بڼـه لـري. نومـوړی لـیکی! (زه د وړوکوالـی نـه تـر بلوغـه همیشـه دخـدای پـه هیبـت او دهغـه د عدالت نـه، پـه ویـره وم او چـې دعلـم حاصـلول مـې شـروع کـړل، نـو خـپل اسـتاد لکـه مـلا مصـر احمد (رح) او نورمـې لـه ځـان نـه هـم زیـات لـه خدایـه پـه ویـره ولـیدل او دا ویـره او هیبـت مـې هغـه وخـت لا زیـات شـو چـې د ملاجمـال الدیـن هندوسـتانی پـه خدمـت کـې

(۲) تذکره ص ۱۶۵

اوسیدم نو د هغه طالبان مې ولیدل چې په خندا او قهقهه کې مشغول وو او بې تکلفه خبرې یې کولې او د مرګ ویره د دوي په زړه کې نه وه دهغوي په صحبت کې زما د زړه نه هم ورو ورو هیبت کمیدو اود روح بې کراري مې ارام کیده نعوذ بالله من الحور بعد الکور مې رایاد شو.[۱]

په همدغه وخت کې چې درویزه د ریاضت او علم دا مرحلې طی‌کولې نو سیدعلی غواص ترمذي چې په ((پیربابا)) مشهور و او درویزه بیاوروسته دنوموړي شیخ د طریقت پیرو شو د (سدوم) په علاقه کې دیره شوي واو په تبلیغ او تدریس او ارشاد کې مصروف و.

هسې روایت دي، چې نوموړي پیر د ۹۰۸ هـ ۱۵۰۲ ع کال په شا او خوا په هندوستان کې پیدا شوی دی. پلار یې قنبرعلی، د همایون باد شاه خپل او هم د دربار سړي و.

خو دده نیکه سیداحمد یوسف نومیده، چې عالم سړي یادیږي. پیر باباد خپل نوموړي نیکه لاړ واخیسته. له یوې خوا یې دخپل نیکه څخه علم حاصل کړ او له بلې خوا د دین مینه او هم یې په طریقت کې د (کبرو په سلسله) کې دخپل نیکه نه اجازه واخیسته، وروسته یې بیاد شیخ سالار رومی (رح) نه په څلورو سلسلو او طریقو. (چشتیه، سهروردیه، شطاریه او ناجیه خلاجیه) کې بعیت او په څلورو واړو طریقو کې ماذون شو او بیاوروسته دخپل شیخ په ارشاد (کوهستانی علاقې) ته

---

(۱) تذکره ص ۱۶۶، اخوند درویزه، پېښور، ۱۹۶۰

روان شو.[۱] چې دا قصه پخپله اخوند درویزه په تذکره الابراروالاشرار کې د هغوي دخولی نه داسې نقل کړې ده. (شیخ نه رارخصت شوم اونیت مې دکشمیر د کوهستان وکړ. قدرتی د گجرات په کلیو کې په یو کلی راغلم، چې هغه ته (داوُد پنړه) وایی، گیلاس نومی یو سړي ولیدم او خلکو ته یې چیغې کړې چې ما کوم سړی،چې په خوب کې لیدلی و، همدغه دي، راځی چې په پیری یې ونیسو او د شریعت بیعت، تري وکړو، نو ما تري د امتحان په توگه پوښتنه وکړه، چې تا دا خوب مخکی چاته بیان کړي و، خلکو گواهی وکړه چې هو! ستا دتندي تر خاله تړوله رنگه نقشه یې پوره بیان کړي ده.

هلته مې خلکو ته بعیت ورکی اوڅه موده هلته دیره شوم.

همایون چې د شیرشاه نه شکست وخوړ اود باقی پاتې لښکر سره کابل ته روان شو په دغه ځاي کې یې مې پلارسره ملاقات شو. په مینه یې په غیږ کې ونیولم. راته یې وویل چې زه په غلطه وم د پلارنیکه ځای تا ونیو. الحمدالله چې دې مرتبې ته ورسیدې. ده دوې همیانی یوه د سرو او بله د سپینو راکړې. ما ورته وویل چې زما نه دي په کار هغه وویل دا نذر دی، فقیرانو ته یې ورکړه. نومې واخستې، بیامې په زړه کې خواهش پیدا شو او ډیر ارامه شوم. ویل مې چې والوتی او د شیخ سالار رومی (رح) په خدمت کې حاضر شوي، چې ددې پیری. مریدی. د قیدنه مې ازاد کړي، مخ مې هغه طرف ته وکړ. څو ورځې چې لاړم نو د شیرشاه سپایان د همایون په تعاقب کې راروان وو. څنگه چې ما په فارسی خبرې کولې، وی

---

(۱) تذکره له ۱۴ مخ څخه تر ۳۴ مخ پورې (بیلابیلو مخونو کې)، اخوند درویزه، پېښور، ۱۹۶۰.

نیولم او دښمن یې وګڼلم، تپوس یې وکړ، چې دنیا درسره شته؟ ما وې هو. دوه همیانۍ یوه د سرو او یوه د سپینو دي. خادم ته مې اشاره وکړه چې وریې کړه.[۱]

اخوند درویزه د خپل مرشد (سیدعلي غواص ترمذي) چې په پیر بابا شهرت لري په دې هکله پخپله تذکره کې لیکي، چې پیربابا(رح) چې کله اجمیر شریف ته ورسید حضرت سالار رومي (رح) وفات شوی و، نو د سالار رومي زوی دخپل پلار په اشاره (اجازه) پیربابا ته خرقه ورکړه او ورته یې وویل چې پلار مې ته کوهستان ته رخصت کړی وي ستاخپل وطن ترمذ هم کوهستان دی نو خوښه دي چې ترمذ ته ځې او که کوم بل کوهستان ګوري خو کوهستان ته لاړه شه.

هغه و چې پیربابا د ترمذ په نیت روان شو خو په پیښاورکې ورسره د حاجي سیف الله ګګیاني او ملک ګدای ګګیاني ملاقات وشو. دادواړه په اجمیرکی د هغه عقید تمند شوي وو، نودوي د پیربابا څخه خواهش وکړي، څو ورځې د دوي په وطن کې تیري او دي خلکو ته د دین لار وښیي. هغه وه چې پیر بابا په (دوابه) کې پاتې شو او په موقتي توګه هلته میشته شو.

یو کال پس یې بیا ترمذ ته د تلو اراده وکړه خو مریدانو د ده عقید تمندانو ورته عرض وکړ چې په یو سفروکي دوه ملحدان دي چې خلک د محمدمصطفي صلي الله علیه وسلم د

---

(۱) تذکره له ۳۵ مخ څخه تر ۳۷ مخ پورې، اخوند درویزه، پېښور، ۱۹۶۰

دین نه اړوی او دوی ډیر شهرت حاصل کړیدی، یو دغلجو پیر طیب دی او بل پیرولی بریخ، دوي دواړو ډنګ ډونګ او سرود حلال کړي دی، نر او ښځي ورته نځا او ګډا کوی او پیر ولي خوځیان ته خداي وایي که تاسو د یوسفزو علاقي ته لاړه شی نو داخلك به د ګمراهي نه، بچ شی.

نوځکه پیر بابا (رح) د یوسفزو علاقې ته راغي او په (سدوم) کی دیره شو.

په سدوم کي د بارك شاه زي ملیزو، ملك دولت خپله خور پیر بابا ته په نکاح کړه په همدي وجه پیر بابا (سید علي غواص ترمذي) په سدوم کي ځاي او میشته شو، خویوازي یو وار د مورد لیدوله پاره ترمذ ته تللي او بیا هم د هغي په وینا بیرته راغي او د ژوند تر وفاته د سدوم کلي ته بل چیرته نه دي تللي ترڅو دیواتیا کالو په عمر وفات شو.

په دي وخت کې د اخوند درویزه عمر په مشکله یوولس کاله و، نو دا چې درویزه د بلوغ نه مخ کې په ریاضیتونو کې مشغول و د اوینا صحیح نه ښکاری. په هغه وخت کې چې پیربابا یوسفزو ته راته دده مشهور مرید اخوند درویزه هم ورسره و[۱] او د اوینا هم صحیح، نه ښکاری، چې اخوند درویزه ننګرهاري د (دوابی) د قیام په زمانه ۹۵۲ هـ ۱۵۴۵ ع کال کې د پیربابا مرید شوي وی[۲] په ۹۵۲ هـ ۱۵۴۵ ع کال کې د اخوند درویزه عمر صرف دوولس کاله وواو دا روایت

---

(۱) روحانی تړون ص ۴۴۱، عبدالحلیم اثر، پېښور، ۱۹۶۵
(۲) روحانی تړون ص ۴۴۸، عبدالحلیم اثر، پېښور، ۱۹۶۵

يقيني دی چې درويزه د بلوغ نه وروسته د علم په زده کړه مشغول شوي دی او دا هم پوره باور شته. چې ده د پير بابا، يعنی د سيدعلی غواص ترمذي لاس يې د علم د حاصلولو نه پس نيولی دی[1]

نو داسې بريښي، چې د اخوند درويزه ملاقات د پيربابا سره په وروستنيو تاريخونو کې شوی دی.

که څه هم ددې اهم ملاقات تاريخ په يقين سره نه شي ټاکل کيداي، خو بياهم اخوند درويزه دغه هومره ليکلي دی، چې د بلوغ او تعليم نه مخ کې هغه شيخ افغانان شوي و او ملا سنځر پاپينی په شان عالم به تري د (مغيباتو) تپوس کاوه. د شرعی بلوغ حد او اندازه هر څه چې وی خو به هغه زمانه کې د شپاړسو کالو نه کوچنی هلك چا د شيخی په مسند نه شو منلی.

نود علم د شروع کولو نه مخکې موږ د اخوند درويزه عمر تخميناً د شپاړسو او اتلسو کالو ترمينځ ټاکلی شو.

د پورتنيو دلايلو بر سيره بايد ووايو. درويزه يو کال د ملامصراحمد نه قرآن مجيد او څو دينی کتابونه لوستي دي او بيا يې څه موده د مولانا جمال الدين هندوستانی سره تيره کړې ده او دومره نوره موده چې د طالبانو خندا او بې تکلفی او بې پروايی دده په زړه کې هم اثر وکړ، که داټول وختونه (څلور کاله هم موږ د درويزه پر عمر زيات کړو نو، د پيربابا سره د ملاقات په وخت به دده (درويزه) عمر د شلو يا دوه ويشتو کالونو تر مينځ و او دا به د ۶۰ - ۹۶۲هـ ۵۲-۱۵۵۴ ع واقعه وي.

زموږ استدلال او استناد دده تذکره ده اخوند درويزه ليکلی دي، چې د هندوستان د طالب العلمانو سره د صحبت

(۱) تذکره ص ۱۶۷ ، اخوند درويزه، پيښور، ۱۹۶۰.

په وجه زما دزړه نه هیبت په کمیدو شو، روح مې په آرام کیدو شواو ((نعوذبالله من الحور بعدالکود)) مې را یاد شو. چې په ورځو کې یوه ورځ خپل مخدوم او مشفق او مکرم ملا سنځر رابانديې شفقت وکړاو د شیخ الاسلام و المسلمین و امان المؤمنین و سراج الامتین شیخ سیدعلي ترمذي علیه الرحمه و الغفران پاکې استانې او مبارك کور ته یې ورسولم. دملا قات نه پس مې ورته دخپل زهد او ریاضت کشف او کرامت حال بیان کړ. مسکی شواو ویې فرمایل. چې ((د پښتنو کامل پیر)) شوی یې. خو ښه دي نه دي کړی ځکه چې بې د شیخ فانی فی الله له اجازې پرته ریاضت کول. اخر سړې ګمراهی ته رسیږي [۱] د پورتنیو عباراتو نه هم دامعلومیږي چې د پیربابا (رح) (استانه) او (خانه) تر ده دمخه موجود وو او ملا سنځر دې استانې سره تعلق درلود.

داسې استنباط کیدای شي، چې تر تولو لومړی اخونددرویزه دخپل ریاضت مشغولتیا او بیا دعلم طلب. د پیر بابا ځخه لیرې یا بې پروا ساتلی و نوکله یې چې دعلم په رڼا کې دکامل پیر تلاش شروع کړ او خواو شایې وکتل. نو په پیر بابا یې نظر پریوتو اود خپل زوړ استاد ملاسنځر پاپینی په واسطه یې د پیر بابا (سیدعلي غواص ترمذي) سره تعلق جوړ کړاود شریعت او هم د طریقت اړیکې د نوي شاګرد او استاد ترمینځ ټینګی شوې.

هغه و. چې پیربابا د خپل دستور سره سم اخوند درویزه ته د شریعت بیعت وکړ او د توبې نه وروسته یې د ایام بیض

(۱) تذکره ص ۶۸. اخوند درویزه، پېښور، ۱۹۶۰.

روژې، صلوه اوابین پنځه وخته دجمع سره لمونځ او نور داسې ملایمات درویزه ته تلقین کړل چې اخوند درویزه مخ کې لا د طریقت دهسې دستورونو او تلقیناتو عامل و.

څه موده پس د اخوند درویزه استاد حاجی ملازنګی پاپیني، پیربابا ته سپارښتنه وکړه چې (اخوند درویزه د ذکر او سلوك اهل دي نو شوق لري.)

هغه و چې پیربابا ورته د شرایطو د تلقین نه پس د ذکرښوونه شروع کړه[1]

تصفیه او تزکیه خو د هغه نه مخ کې شوې وه، چې وروسته نو کامل استاذ او سمه لار یې ونیوه. او داسې حضور او مقام ته ورسیده چې خوب، خوراك او د خلکو سره لیدل، کتل ترې پاتې شول او ددې نه مخ کې چې د کشف او کرامت کوم بې اعتباره کیفیتونه پرې تیریدل د هغې نه هم خلاص شو او په لږه موده کې یې چې څه موندل، وې موندل[2]

تر دې مرحلې وروسته نو بیا پیر بابا اخوند درویزه ته وویل، چې اوس دتصوف په علم کې هم کوښښ وکړه چې (خپل ایمان او د ډیرو مسلمانان ایمان د زوال نه وساتې او کمزوري مسلمانان له تشبیه او تعطیل نه بچ کړې، ځکه چې نن سبا ډیر د هوا اهل په دې علم کې فکر کوي اوددې علم په اشاراتو او عباراتو نه پوهیږي، نو د خداي بې چون و بې چګون په پیژندوکی غلط شي او د کفر تر حده ورسیږي بعضي خداي تعالی ته یو شکل ورکړي او بعضي خدایتعالی به یو ځاي ګڼی

---

(۱) تذکره ص ۱۶۸، اخوند درویزه، پېښور، ۲.
(۲) تذکره ص ۱۷۰، اخوند درویزه، پېښور، ۱۹۶۰

لکه عرش اونور... بعضې ارواح او انفاس، خدای ګڼي، بعضې ټولو شیزونو ته یو وجود او یو ذات وایي، بعضې خدای په مخلوق او مخلوق په خدای کې ورك ګڼي، بعضې خدای لکه د تم په وښو او شیزونوکې خور ګڼي او بعضې بیا خدای زره زره شوی خیال کوي او همدارنګه بی شمیره داسې خبرې چې د شریعت محمدي سره سمون نه خوري، په ژبه راوړي او په دي خبرو او معتقداتو کافران کیږي. (نعوذ بالله من الکفر بعد الایمان.)

لنده دا چې اخوند په خپله تذکره کې د پورتنیو موضوعاتو په هکله په پای کې داسې تفصیل ورکړي دي. (... او په دي وخت کې شیخ یعنی (پیربابا سیدعلی غواص ترمذي) راته (جام جهان نمای) راکړ او د هغې لوستل یې راته شروع کړه[1] د سلوك په لاره کې داسې ځایونه راځي چې سالك په کې مختلف نورونه او رياګانې ويني دخپل روح د خپل وجوداو د صفات خداوندي، چې ډير خلك ددې رياګانو تر مینځ توپیر نه شي کولاي.

نو داسې معلومیږي چې اخوند درویزه دې منزلونو ته ورسیده. تر دې وروسته نو بیا پیربابا ورته د درس او عمل دواړه لارې په یوه ځای پرانستې او د علم فکتې یې ورته په مشاهده حل کړلې.

له همدې امله، اخوند درویزه په دې سلسله او طریقه کې د دریو لاندینو کتابونو نومونه راوړي. جام جهان نمای لمعات.

---

(۱) تذکره ص ۱۷۲، اخوند درویزه، پېښور ۱۹۶۰.

او دخواجه قاسم انوار سوانح او دیوان.[۱] چې په دې درې واړه کتابونو کې زیات مشکل بحث (وحدت الوجود) دی او د تصوف په مرحله کې د ټولو نه مشکله مرحله، هم دغه ده.

نو ویلای شو، چې د مشاهدې او عمل په څنګ کې به اخونددرویزه دخپل استاد شیخ پیربابا (سیدعلی ترمذي) نه یو سبق ووایه بیا به یې شپه اوورځ په هغې کې (تامل او تحیر) کاوه ان تر دې چې په هغه خبره به پوه شو، بیا به یې خپل نومورې استاد ته د هغې بیان وکاوه تر څو، چې استاد یې ورته وویل، چې (ښه یې داوي، صحیح داوي او پوره پوه شوي.) نو هله به یې ورته بل درس شروع کا.

په دې توګه درویزه د فکر او د سلوك دواړو مرحلو نه په یو ځای تیرشو، تردې چې دده په قول (پوه شوم پرې چې څه د پوهیدو وو او معلوم مې کړل چې څه د معلوملو وو. سره ددې چې هیڅ مې معلوم نه کړل او په هیڅ پوه نه شوم.))

د تذکرې د پورتنې موضوع د اخرې بیان سره سم د بایزید روښان په باره کې (چې د پیرۍ او مریدۍ مدعي و) داسې لیکي: غالباً دغه ورځې وې چې پیر بابا (رح) ته د وحدت الوجود او پیرې د یو بل علمبردار ته پخپله حلقه کې د شاملولو دعوت راورسیده او د پیرې د یو بل علمبرداره څخه زمامقصد او اشاره بایزید روښان ته ده، داد ۹۷۸ هـ ۱۵۷۰ ع کال واقعه ده.

د پورتنیو مفصلو څېړنو او لیکنو څخه، چې مو د اخونددرویزه د پیژندګلوۍ په هکله وکړې. د ایجاذاو اختصار په توګه، داسې استنباط او استنتاج کولای شو، چې اخوند درویزه ننګرهارې د ګدایي زوی، د سعدي (ښادي) لمسی، د

(۱) تذکره ص ۱۷۲. اخوند درویزه، پیښور، ۱۹۶۰.

درغان کروسی، د احمد کوسی، د متی کودي او د جیون پردی دی.

جیون په لغمان کې میشت و درغان د شینوارو پاپین ته کډه شو. زوی یې سعدي (ښادی) له یوسفزیو سره دسوات او بونیر سیمو ته ولاړ او په ملیزو کې یې له مندوزیو سره واړول، د سعدي (ښادي) زوی (ګداي) له مندوزو څخه کډه شو. اسماعیل خیلو ته ولاړه، اسماعیل خیل د ملیزیو یوسفزو په چغرزي ښبه کې ګډیږي او په (بونیر) کې اوسیدل.

اخوند درویزه د ۹۴۰ هـ ق ۱۵۴۳ ع کال شاوخواکې هلته وزیږیده. د بونیر له پایینو ملایانو، ملامصراحمدوملازنګی اوملا سنځر څخه یې څه کتابونه ولوستل هندوستان ته هم د زده کړې له پاره تللی دی. وطن ته تر راستنیدولو پس د سیدعلی غواص ترمذي (۹۰۸- ۹۹۱ هـ ق) چې پښتانه یې پیربابا بولی مرید شواو پس له ډیرې مودې یې له پیربابا څخه دخلافت او ارشاد اذن وموند.

اخوند درویزه د پیر روښان (۹۳۱ - ۹۸۰ هـ ق) معاصر او د روښانیانو له کلکو مخالفینو څخه ؤ او مخزن الاسلام یې ددغه مخالفت په اغیزه له روښانی تحریك سره د مقابلې له پاره کښلی دی.

په همدې وجه درویزه دمخزن په شروع کې راوړي دي. (اما سبب تالیف این کتاب. معلوم باد که فی زمان نادر افغانان یوسفزي، زندیقی پیدا شده بود...

دران ایام شهرتی تام یافته نام او بایزید بود لقب خود را پیر روښان کرده و فقیر لقب اورا پیر تاریك کرد...

بزبان افغانی شعر میگفت. فقیر برخلاف او شعر های افغانی آغاز کرد.[۱]

د اخوند درویزه د مرګ نیټه مولوي غلام سرور لاهوري (۱۲۴۴ - ۱۳۰۷ هـ ق) په خزینه الاصفیا (د ۱۲۸ هـ ق تالیف) او ګنجینهٔ سروري (د ۱۲۸۴ هـ ق تالیف (کې ۱۰۴۸هـ.ق راوړې ده، په نورو کتابو کې لکه تذکره علماء هند د بلوم هارټ د برټش موزیم کتلاك، د پښتو ادب تاریخ، روحاني تړون او نورو کې هم ۱۰۴۸ هـ ق داخوند درویزه د مرګ کال ښوول شوی دی، خو فاضل استاد پوهاند (رشاد) چې د ګلشن روه، پرکتاب یې یو عالمانه سریزه او تحقیقی کره کتنه او ادبي نقدلیکلی دی. نوموړي محترم پوهاند د اخوند درویزه د مرګ په هکله دخپلې سریزې په (۴۹ مخ کې) داسې لیکي. (... خو ماته دغه ټاکنه سمه نه بریښي او داسې دلیلونه راسره شته چې د هغه له مخې د اخوند درویزه مرګ باید تر ۱۰۲۸هـ ق کال وروسته نه وي پیښ.)[۲]

د اخوند درویزه زیارت پېښور ته نږدې دهزارخاني په لویه هدیره کې دی.

نوموړی اخوند فقیه، (دیني علومو عالم) فقیر، لیکوال متشرع، متصوف او په تصوف او په طریقت کې د مرشد او پیری څښتن او په محمدي شریعت برابر، یو عالي سالك و، چې وروسته بیا دي دخپل مرشد (پیربابا) سیدعلي غواص

---

(۱) مخزن، د اخوند درویزه د تقویم الحق په زیار، پښتو اکیډیمی، ۱۹۶۷

(۲) ګلشن روه د میجر هانري جارج راورټي، دریم چاپ (سریزه) داستاد رشاد د ۱۳۵۶ هـ ش کال، د کابل چاپ

ترمذي په اذن د پيرۍ درجې ته ورسيده او د اهل سنت او جماعت يعنی د سنيانو زياتره ډلې دده مريدان او پيروان وو او هم دده سره د ژوند تر پايه پورې ملګري او متحدان وو.

لنډه دا چې اخونددرويزه يومسلم او مؤمن، موحد، حنفی مذهب او هم افغان و. په تصوف او طريقت کې دوحدت الشهودمقام ته په رسيدلو کې ډير ټينګ، معتقد او معتصم و او هم ټينګار يې ښود او نور خلك يې، هم د ځان وخواته رابلل او د وحدت الوجوديانو سره يې خپل کلك مخالفت ښوده، اخوند درويزه په طريقت کې د وحدت الشهود يعنی ټول له ده نه دي (همه ازاوست) پر خواو، او داسې ښکاري چې په طريقت کې يو متعصب صوف و، ځکه چې ده په طريقت کې دخپل مرشد اواستاد (پيربابا) سيد علی ترمذي څخه ډير زيات دستوري اونظري مشاهدې او هم عملي درسونه زده کړي وو.

اخونددرويزه ننګرهاري په پښتو، دري او عربی ژبو پوهيدو او په پورتنيو ذکر شويو دريو ژبو يې خبرې، ليکنه او ژباړنه کولای شول.

په پښتو او پارسی ژبو کې دده د ليکنې ادبي سبك د بايزيد روښان ادبي سبك يعنی مسجع نثر او د بايزيدروښان د ادبی سبك پيرو دی، چې زه به د خپل همدغه تاليف په کوم بل راتلونکی فصل کې دده د ادبی سبك څرنګوالی او د نوموړي اخوند د تصنيفونو او ژباړو په هکله مفصله څيړنه او بحث وړاندې کړم.

په پای کې د پروفيسر اسلانوف دشوروي نامتو محقق نظر داخونددرويزه د شخصيت دځرنګوالی په باره کې داسې راوړم. (که اخونددرويزه دپښتنوپه سيمه کې سياسی هدفونه پرمخ نه وای بيولې،نودی به ديوه متشرع عالم په حيث دډيرې ستاينې مستحق و)[۱]

---

(۱) د روښانيانو ملی نهضت، د استاد اسلانوف، د سرمحقق معتمد ترجمه، ص ۲۸، د ۱۳۶۵ هـ.ش کال چاپ.

# دوهم فصل

## داخوند درویزه دعصر اجتماعی، سیاسی، اقتصادی او فرهنګی څیره

څرنګه چې هر نهضت که ملی آزادي بخښونکی نهضت وي یا دموکراتیك بزګري یا کارګري نهضت یا عرفاني او تصوفي ادبي، علمي، صنعتي، او یا زراعتي. داواړه اوټول نهضتونه او منظم علمي انقلابونه د هر راز علمی، ادبی، سیاسی، اقتصادي او دنورو مختلفو عواملو زیږنده دی. کله چې موږ د اخوند درویزه غوندې یو فقیه او د دینی علومو یوه شخصیت، چې په شریعت ډیر پابنداو نورو ته یې هم د شریعت په پابندۍ او علاقمندۍ سره ټینګار کاوه او حتی په دې لیاره

کې لږ څه تعصب هم بوده او امر بالمعروف او نهی بالمنکر یې خپله شرعي او وجداني وظیفه بلله. نو پر داسې یو چا باندې، چې څه ویل غواړو ددغو سوالونو سره هرومرو مخامخ کیږو چې اخوند درویزه په څه راز محیط او ماحول کې ژوند کاوه؟ چې ددغو سوالونو ځواب به په دغه کوچني مبحث کې توضیح شي. له دې کبله چې د یو هسې پخواني صوفي او فقیه په باب تر یوه حده پوره معلومات حاصل کړو، مجبور یو چې د هغه په آثارو کې او دده د وخت او معاصرو لیکوالو، شاعرانو، مؤرخینو، ملي، سیاسي عرفاني لارښوونکو او هم تاریخي حوادثو، اجتماعي، سیاسي او اقتصادي روښونو او عواملو په منځ کې شخصیتونه ولټوو.

زه دلته غواړم چې د اخوند درویزه آثار، دده د پیروانو لیکنې او بیا دده د مخالفینو نظر، اثار، عادلانه یا غیر عادلانه کردار او په تیره بیا د هغه وخت سیاسي او اقتصادي روښونه، چې دده په اجتماعي ژوندانه باندې یې ژوره اغیزه درلوده، وڅیړم، بیانو د هغو په استناد د اخونددرویزه دعصر په سیاسي او اجتماعي اوضاعو وغیږیږم.

تر هر څه دمخه زماد څیړنې حدود او چوکاټ داسې ترتیبیږي، چې اخوند درویزه په کوم تاریخي عصر کې ژوند کاوه او د هغه عصر مقتضی د پښتنو په خاوره او په نوره دنیا کې څه راز وه؟

دتاریخ په شهادت کوم وخت چې اخوند درویزه په ۹۴۰ هجري کال کې پیدا شو، دا هغه زمانه وه، چې په هندوستان کې د پښتنو حکومتونه لکه د لودیانو او سوریانو پر له پسې امپراطورۍ چې پخوا جوړې شوې وې په دغه وخت کې (د

اخوند درویزه په وخت کې) نه یوازې مخ په خوړ وې بلکې په هندکې د پښتنو دحکومت کمیله بشپړ تړله شوې وه او سلطان ابراهیم لودي د پښتنو پاچا، د بابر پاچا (چې د کورګانیانو او مغولیانو له کورنۍ څخه و) ماتې کړې وه او کورګانیانو ته قدرت په لاس ورغلی و.

له بابر څخه وروسته پاچاهي د جلال الدین اکبر په واك کې شوه، چې اخوند درویزه په دې وخت کې د پښتونخوا په سیمو او په ننګرهارکې د دیني علومو طالب العلم و او بیا وروسته دعلي ترمذي د دیني علومو شاګرد او دتصوف او طریقت مرید، پیرو او شاګرد شو.

د سلطان ابراهیم لودي ماتې اود کورګاني حکومت له برقراریدو څخه دمخه پښتني مهم سلطنتونه او امپراطوري موجودې وې، چې د هند څخه نیولې تر افغانستان او د پښتونخوا ټولې سیمې او د قبایلي پښتنو ټول سرحدونه یې په واك کې وواو اداره کول یې او ټول ملك په جاګیر دارانو باندې ویشل شوی و. مرکزي حکومتونه هم غښتلي وو او دا جاګیرداري اغلباً د افغانانو څخه متشکل کیدې. ولې وروسته وروسته کله، چې د پښتنو مزمن مرض، یعنې نفاق د پیرۍ، مریدۍ او دپیرانو او مریدانو پره او جنبه او نور خپاره شول دکورګاني حکمرانانو سترګې یې د هندوستان خواته راواړولې دجاګیردارانو تر منځ نفاق پیدا اود مرکزي حکومت سره یې نژدې اړیکې نه درلودلې. همدا شان د رعیت او جاګیردارانو تر منځ صمیمانه ارتباط نشو ټینګیدای. نو دا وجه وه چې په ټولنه کې هر راز ناخوالې او فسادونه او نور پیدا شول ګواکې طبقاتي تضاد تشدید وموند.

دا هم باید ولیکل شي، چې افغاني سلطنتونو په وخت کې یوزیات شمیر افغانان په تیره بیا پښتانه قبایل د قبایلو څخه په مختلف تومونو یعني د تاجرانو، دیني‌مبلغینو او نورو په رنګ، هند ته په تیره پنجاب او سندته ولاړل او هلته میشت شول.دا څرګنده خبره ده، چې د هندوستان په لویه خاوره کې د هغه ځای په سیاسي، اجتماعي اواقتصادي ژوندانه کې او حتی په فوځي او لښکري قواووکې د داوطلبو په حیث ننوتل، دوي خپلې اصلي اړیکې د قبایلو او خپلو سیمو له اوسېدونکو سره ښې ساتلې. په سیاسي او اداري لحاظ ډیر زیات افغانان د هند په مختلفو ابادو ځایونو کې دامیر او مطلق العنان حاکمانو په حیث مقرر و، د اقتصاد له پلوه هم دوي نظرو نوروخلکو ته وروسته پاتې وو دغه وخت دوي دتجارت په مختلفو روشونو بلد شول. د یو روند او محدود اقتصاد څخه ازاد بازارته د تګ او راتګ او د تجارتي مالونو وړل راوړل رواج شول، ددې پر ځای چې لکه د پخوا په شان ځای په ځای خپل تولیدي شیان خرڅ کړي دخپلو هیوادونو او د تاتوبي د ځایونو څخه د باندې هندوستان او یا نورو ځایونو ته د پښتونخوا له لیارې وړل او راوړل، چې دې تګ او راتګ په خپله د دوي پر ژوندانه باندې زیات تاثیر واچاوه. بدبختانه د قدرت طلبۍ او جاه طلبۍ احساس دومره په دوی کې قوي شو. بې له دې چې د کورګانیانو دښمنۍ ته فکر وکړي ډلې،ډلې پراګنده او خواره شول، چې دا کار پخپله کورګانیانو ته د قدرت د انتقال لوی عامل و. کله چې د افغانانو حکومتونه متفرق شول، دګورګاني حکومت قدرت شاوخوا خپور شو، پښتانه په ټول هند کې په تیره بیا دهند په شمال

سیمو کې دومره تر فشار لاندې ونیول شول، چې نه یوازې خپل دولتي منصوبونه او رتبې یې له لاسه ورکړې، بلکه د دوي جایدادونه او جاګیرداري یې هم غصب او مجبوره شول، چې نورو سیمو ته مراجعت وکړي. په دغه وخت کې ځینې خلك د هند نورو سیمو او ځینې بیرته خپل وطن ته راغلل. په دغه وخت کې چې ځینې قبایلي پښتانه او نورخلك بیرته سرحدي سیمو ته یعنی قبایلي سرحد ته راتلل، بایزید روښان هم (چې وروسته بیا د انقلابي نهضت د لارښود په حیث په صحنه کې راوزي) له خپلې مور سره د جالندهر څخه کاني ګرم یعنی خپل اصلي ټاټوبي ته راځي، لکه: دمخزن په مقدمه کې تقویم الحق د اخونددرویزه له خولې نه دبایزید روښان دراستنیدوموضوع خپل اصلي وطن ته داسې لیکي. ((بایزید شش ساله بود که قواي بابر پشتونها را تار و مار ساخت و پشتونهای جالندهر، به وطن اصلي شان متواری شد. بایزید و مادر بایزید هم در هیمن آشوب به کانی ګرم آمدند.))

که څه همدا پښه په ظاهرکې د پښتنو په ضرر تمامه شوه، خو ځینې ګټې هم پکې خوندي وې.

په هغه وخت کې اجتماعي احوال هم د تکامل په مسیر کې د ملوك الطوایفی، خان خانی او لویو جاګیردارانو ترتاثیر لاندې وو، چې د تناقضاتو منځ ته راوستل یې خاصه ده او هر هغه نهضت چې د یومحدود مسلط اقلیت او د حریص جاه طلب ګټه یې په خطر کې اچوله. په ناکامی منجر کیده. دغه مهال درې ډلې خلك په جامعه کې موجود وو، چې مالي او معنوی قدرت یې په لاس کې و او غوښتل یې چې تل خپل قدرت په لاس کې ولري. نو هرو مرو د ګورګاني دولت سره

همکاروو اوددې حکومت ملاتړ یې کاوه، ځکه دهغوي یوازینی حامی ګورګانی دولت و. هغه درې ډلې خلك دادي:

۱ - لومړي ډله هغه ملاکان او لوی زمینداران وو، چې د قبیلوی سیستم په بناء لوی لوی جایدادونه یې د قبیلې د مشر په نامه ثبت کړی او ټول محلي اختیارات د دوی په لاس کې وو.

۲- دوهم هغه دولتی مامورین وو، چې دګورګانی دولت سره یې همکاری کوله او یوه منظمه جاګیرداری یې هم په لاس کې وه او هر هغه نهضت چې په دګورګانیانو پر ضد شروع شو، د هغه د خپه کولو د پاره به دوي چمتو وو، چې متاسفانه په دغه جمله کې پښتانه امیران هم وو.

۳- دریمه ډله ځینې روحانیون و، چې هغوي هم د یوې خوا په عوامو کې دمذهبی او روحانی قدرت خاوندان وو او د بلې خوا د وخت حکومت له خوا دملی مبارزینو پر ضد تقویه کیدل او په ټولنه کې د نفاق او ټوټې کولو په منظور د دوي سره مالی او معنوي مرستې کیدلې چې درباري درویزګان هم په دغه دریمه ډله کې شامل وو د مثال په ډول په روښانی نهضت کې (د تاریخ په شهادت) د پیربابا سیدعلی ترمذي او همدغه اخوند درویزه (د سیدعلی ترمذي شاګرد اومرید) چې د بایزید روښان معاصرو او د هغوي پیروان، مریدان، د حاکم قدرت اجیران د پیر روښان په تکفیر کولو او د هغه د تحریك دمخنیوی د پاره (دارنګه درباري درویزګان او د مذهبي روحانی قدرت خاوندان او د دوی د پلویانو ستر رول او لوی لاس) و. حال داچې د بایزید روښان دمذهبی تعلیم او عقیدې له نظره، د بایزید په تصانیفو کې د خیرالبیان کتاب څخه تر مقصود المومنین او

صراط التوحيد پورې) داسې کومه خبره نشته چې په هغه کې دکفر او بې ديني او دالحاد الزام پرې ولګول شي.

د بايزيد تول تصانيف د قرآني احکامو، احاديثو او د شرعي، مذهبي او ژوندي تصوفي مسائلو پر اساس ليکل شوي دي پوازې که (او سبحان) او (بايزيد) کلماتو ته اخوند درويزه او دده پيروان.مريدان او دده مشر او د وخت روحاني او د درباري قدرت خاوند پير بابا سيدعلي ترمذي د اعتراض اود انتقاد ګوتې نيسي، نو د بايزيد ته مخ کې نورالدين عبدالرحمن جامي او تر هغه دمخه مولانا جلال الدين بلخي او بيا تر هغه د مخه په خواجه عبدالله او هجويري باندې يې ولې اتقاد نه دي کړى او کوم کتاب يې د هغوی دتصوفي افکارو پر ضد نه دي ليکلى، ځکه چې نوموړي وجوديان د وحدت په ډيرو اوچتو الفاظو سره د خداى په ذاتي تجلي کې او هم د وحده الوجود په باريکو مسائلو او په کائناتو کې د يو واحد خالق اسرار او رموزات بې پردې ويلي دي او حتى ممکن الوجود (مخلوق) يې واجب الوجود (چې خداي دى) کتلي دي. ددې درې ډلو تر څنګه په جامعه کې يوه بله ډله هم وه، چې څلورمه ډله ورته ويلاى شو او دا څلورمه ډله هغه بزګران. کسبه کاران او ياڅرګند حرفه يې کسان وو، چې کله کله به يې د پيسو او ځينو نورو وعدو په خاطر، ديو بل سره د رول او خپل غرضي مرامونو يې پر مخ بېول.

اخوند درويزه د وخت د حاکماتو او د پير روښان د کورنۍ تر منځ، د جنګ اور ته لمن وهي او داسې وايي. (يوسفزاى ها، اموال اين کافرانرا غارت کرده. زنان و اطفال شانرا برده ساختند ) د اوو د هغه وخت اجتماعي او سياسي نظام

پخوا مو ولیکل، چې افغاني سلطنتونو په هند کې ادب، معماري او داسې نورهنرونه خپل معراج ته ورسول او طبعاً پښتانه ډیر زیات وروزل شول او دټولنیزو ډلو تر څنګ ځینې نور تحولات پیداشول، چې هغو هم قبایلیانو ته د تجارت سیر او سیاحت موقع پیدا کړه، ځینې کسبه کاران او کرایه کښ او نور، چې دقبایلو دمحدود فشار دژوندانه څخه، فارغ شوي وو او زیاترو یې په ښارونو کې ژوند کاوه د انکشاف په حال کې وو. څرنګه چې د هر اقتصادي تحول او په تولیدکې دهر راز بدلون راوستل، نه یوازې تولید او د تولیدي مناسباتو د تنظیم د پاره ستونزې پیدا کوي بلکه دهغه وخت د سیاسي ایجاباتو څخه یې نشات کړي او داسې وضع یې منځ ته راوستلې وه، چې د یوې خوا د تجارت او د اقتصادي ازادو بازارونو د پیداکولو د پاره دخلکو هلې ځلې او د بلې خوادکورګاني پردي حریص ناولي حاکمانو، په تیره بیا (بابر) ډیر کوښښ کاوه، چې افغانستان ته ترهند پورې ټول دخرڅلاو بازارونه پخپل لاس کې ولري، نو خلکو ته یې بې شمیره مشکلات پیداکول لکه، بایزید روښان دا د تضاد حالت پخپلو سترګو د سفر په ترخ کې لیدلی او په کتبي ډول یې په (حالنامه) کې لیکلي دي: (په ځوانۍ کې د وزیرستان څخه د خپلو ملګرو سره د تجارت د پاره کندهار ته ولاړم، خو قافله د حکومت د عمالو له خوا ضبط شوه، زماملګرو زه مجبور کړم چې ورسره بیرم خان حاکم ته ورشم کله، چې ورغلو او شکایت مو ورته وکړ، ظاهراً یې موافقت ښکاره کړ خو بیا یې هیڅ بازخواست ونه کړ.)

د بایزید روښان پیر د پورتنۍ لیکل شوې وینا او لیکنې څخه داسې استنتاج کیږي، چې نوموړي ملي لاربنود، د استثمار ګرو ګمارل شویو حاکمانو ظلم او بې بازخواستې پخپل هر سفر کې په تیره بیا دکندهار په سفر کې پخپلو سترګو لیدل او پوه شوی دی، چې د پردیو او استثمار ګرو ګمارل شوی حاکمان په هر ولایت کې (د افغانستان په ولایاتو او سرحدي قبایلو کې) پر عوامو او بېوزلو مظلومو خلکو یعنی پر افغانانو او پښتنی قبایلو باندې هر راز ظلومونه کوي. نفاق اچول غوارړی او په هره ممکنه وسیله. تفرقه اچوی او هره قبیله، ملیت، لکه پښتانه او نور ملیتونه د درباري درویزه ګانوروحانیونواومتنفذنیو په وسیله یو له بله سره دښمن او دوي سره پراګنده او ضعیف کوي، یعنی دملی قوت او د ټولو سیمو دخلکو ملی یووالی تصنیف کول غواړی تر څو چې خپل عیش، چړچو، استثمار او استبدادی سلطنت ته یې پایښت ورکړي وي لکه، چې محترمه میرمن معصومه عصمتی هم په خپله مقاله کې دې ټکي ته ګوته نیسي او داسې لیکي: (هغه وخت چې بایزید روښان دهند او ترکستان تر منځ تر سمرقنده پورې دکورګانی حکومت ډیر ظلمونه په سترګو ولیدل نو خپلی ملی مبارزي ته یې شدت ورکړ. حتی په یقین سره ویلای شو چې د پیر روښان مبارزي هم په دغه سفرونو کې د کورګانی حاکمانو دظلم او استثمار د لیدلو څخه وروسته شدت وموند....)

د بایزید دنهضت د مخنیوی په غرض یې دملا کانو اولویو لویوزمیندارانو. جاګیردارانو او ګمارل شویو مستبد و ماموریتو پلوي کیدله او علی الخصوص د اکبر باچا له خوا دغو متضادو ډلو سره لکه زمینداران، جاګیرداران. غولیدلی

او تحریك شوی درباری درویزه ګان (اخوند درویزه او دده مریدان دسیدعلی ترمذی په مستقیم تحریك او داکبر پاچا په غیر مستقیم تحریك سره) مالی تمویل او معنوی مرستې کیدلې او برعکس دمظلوم، خوار او بیکار بزګر او کسب ګر او داسې نورو د اکثریت ډلو سره به ظلم او نارواکارونه کیدل، د باج اوخراج اخیستله او هم یې طاقت فرسا کارونه دهمدې مظلومې ډلې په وسیله سرته رسوله.

دلته د بایزید روښان د ژوند پیښو ځینی قیصی په دې نیامت را اخلم، چې ددرویزه د وخت اجتماعی روابط څرګند کړی، ځکه دا دواړه دیوه دوران خلك دي.

یوه بله مساله، چې د بایزید په مبارزه کې په کلی توګه دخیله شوه او دده په ژوندانه کې یې زیات تاثیر وکړ هغه دا وه، چې دبایزید پلار دده مور د کوره وشړله او دی د خپلې میرې سره پاتې شوه، چې دا هم یو راز ظلم اود ښځو اوکوچنیانو په هکله استثمار ګڼل کیږي.

دې کار یعنی د خپلې مور بیلتون په ده کې یو راز عجیب احساس پیدا کړو. که څه هم موږ ګورو چې بایزیدروښان دخپلو مبارزو په لړ کې یواځینی انسان دی، چې په هغه وخت کې دښځو او نارینه وو د پاره مساوي حقوق اعلاموی او پخپله حلقه کې دواړو جنسونو ته په مساوي توګه د داخلیدو حق ورکوی.

حال دا چې دده پر یو داسې مثبت حرکت او ځلانده عمل باندې بیا هم اخوند درویزه د اعتراض او د انتقادګوته نیسی او د استهزا په توګه لیکی، چې عجبه ده تاسو مریدانو او عوامو ډلو وګورئ) چې داملحدان. تاریکیان او دا بایزید، چې

ځانته روښانيان وايي وګورئ، چې دخپلو مريدانو په حلقه کې يې ځينو مېرمنو ته ځاي ورکړي او د ښځو له ډلو څخه يې ځانته مريدانې نيولې. غواړي چې د ښځو څخه پيران او بزرګان جوړ کاندي او د پيرانو مقام ته يې ورسوي. يعني ښځې وګورئ، پيري او مريدي د ښځې سره نه جوړيږي او ښځې پيرۍ ته نه دي جوړې

د اخوند درويزه د پورتني ويتا او ليکني څخه اوچت ځرګنديږي، چې ښځې بيلې دي او نارينه بيل اودده دقول پر اساس ښځې دومره لوړ مقام، حقوق او حيثيت نه لري، نودښځې اونر په منځ کې توپير او تفريق اچول، ښځې ته هيڅ يو راز حقوق نه قايليدل دښځې او مېرمنې مقام ته په درنه سترګه نه کتل او بيا د مېرمنې ستر رول ته چې ټولنه کې يې لري اهميت نه ورکول او په کور او په ټولنه کې د دوی سترې دندې نه منل، دا ټول ګفتار او کردارکه تنګ نظري او تعصبات نه دي نو څه دي؟ چې محترم لوستونکی به پرې قضاوت وکړي.

دهغې زمانې داجتماعي نظام د ښځو او دحکامواوخلکو تر منځ د رابطو په ځرګندولو کې به د بايزيد دا ليکلی بيان هم ډيره مرسته وکړي:

(د کندهار په سفر کې ما وليدله، چې د وخت حاکمانو تر دې اندازې ظلم پر پښتنو باندې کاوه چې يوه ورځ يې په کندهارکې يوه پښتنه مېرمن ونيوله او ددې ويښتان يې د ژرندې پله سره وتړل چې ژرنده به ځرخيده نو دا پښتنه هم ورسره چورليده.)

د پیر روښان د سیاسي او اجتماعي مبارزو ترڅنګه ادبي او فرهنګي بدلونونه هم موازي راغلل او پښتو ژبه، چې په هغه وخت کې درباري ژبه نه وه بلکه عوامي بلل کېده. ده او د اخوند درویزه په وخت کې په تیره بیاد بایزید روښان له خوا په فرهنګي او ادبي ژبه بدله شوه او ارتقايي وموندله او پښتو ژبه ورو، ورو د محاورې او ساده ګۍ او سلاست څخه د فورم له نقطه نظره په تیره بیا د نثر سبك (له محاورې) (سلاست اوايجاد څخه) په ادبي صنعت، لفاظی اطناب او اغلاق بڼه غوره کړه او پخوا چې د پښتو نثر ساده اودمحاورې په شکل لنډې لنډې جملې استعمالېدې او دنثر سبك مرسل نثر و، په دې وخت کې په اوږدو اوږدو جملو کې د راوستلو او لفاظي ايهامو او د لفظي او معنوي صنعتونو په استعمالولو او راوړلو سره په مسجع نثر بدله شوه. د مسجع اوقافيې التزام د پښتو په نثرکې معمول او مروج شو او د يوې موضوع معنیاو تعبير، پېچلتياو اغلاق پيداکړ، دعربي او پارسي لغاتو راوړلو په پښتو نثرکې رواج وموند. ګواکې پخوا چې تر ۶۱۲ هـ پورې بيان او د بيان سبك په پښتو ژبه کې قليل اللفظ کثيرالمعني و، د اخوند درويزه او بايزيد په وخت کې کثيراللفظ او هم کثيرالمعنی شو. د يوې موضوع دتشريح او معنی کولو له پاره ديني، تصوفي، ادبي او فرهنګي اوتاريخي معلوماتو اطلاعاتو او علمي جهان بينۍ ته، اړتياو ضرورت احساس شو.

د بايزيد روښان او اخوند درويزه په زمانه کې ښه تکړه شاعران او اديبان لکه! ارزاني، انصاري، دولت لواڼي اونور، چې د صوفيانه ادب او د عرفاني ادب او علم او معرفت په خصوصيت سره لوړمقام لري اوتر ټولو لومړی بايزيد روښان په

دې کې لوی سهم لري ځکه، چې څو کتابونه لکه خیرالبیان، حالنامه، صراط التوحید، مقصود المؤمنین او نور یې ولیکل، په تیره بیا یې خیرالبیان په څلورو ژبو پښتو، پارسی، عربی او هندي کښلی دی، چې دا په خپله د عوامو د جلبولو د پاره مهم عامل و ځکه هر هغه مبارزه او اجتماعی څیړنې چې، د یو قوم پخپله ژبه او خپلو اصطلاحاتو وشی هغومره یې تاثیر زیات وی.

څرنګه چې د مخه مووليکل، چې اخوند درویزه د بایزید روښان معاصر او د بایزید روښان اوده دمریدانو او پیروانو پر ضد یې په ژبه او قلم تبلیغات، پروپاګند خبرې کولې. پر روښانیانو یې تومتونه او افتراګانې لګولې او ټول خلك یې د بایزید څخه اړول غوښتل او په دوی پسې یې د الحاد او کفر تورونه لګول،همدغه ډول اخونددرویزه د بایزید روښان د خیرالبیان د تصنیف په مقابل او د بایزید د ادبي او هم عرفانی افکارو پر ضد (په همدغه وخت کې ) د پارسي د کتابونو څخه د ځینو دیني علومو موضوعات او مبادي، په پښتو واړول او یوه مجموعه یې د (مخزن الاسلام) په نوم د یوکتاب په ډول په څلورو ژبو پښتو، پارسی، عربی او هندي ژبو. تدوین. تالیف او ویې ژباړل، که څه هم اخوند درویزه مخزن الاسلام د (خیرالبیان) په مقابل کې دده په ګمان د روښانی ګمراهی څخه د ژغورلو په خاطر، هغه سبك، غوره کړی و، چې خیرالبیان پرې لیکل شوی و، مګر هر یو حساس افغان مخصوصاً د یو وطن پرست له نظره د کتاب ارزښت، چې لیکونکی یې د پردي حکومت په لمسا کار کاوه، کموي.

دا چې بایزید روښان له دې جهان داسې ولاړ، چې خپل ملي ارمانونه یې هم له ځانه سره ګورته یووړل. خو د نهضت داسې دانې یې وښیندلې، چې لاتر اوسه په پښتو نخوا کې د ودې په حال کې دي. که څه هم اخوند درویزه له بایزید نه وروسته له دې جهانه ولاړ، مګر د پردي حکومت له پاره دده بېځایه هلې ځلې او حرکتونه او عجیبې تاسفناکې او هم دخندا وړ کارنامې، زمونږ دتاریخ په سینه کې خوندي دي. او هر حساس پښتون او وطن دوست افغان پرې هر وخت هر اړخیزه قضاوت کوي.

هوکې! نه یوازې دتاسف بلکې دژړا وړ ده، چې اخوند درویزه (خیر دی که پښتون نه و) د یو افغان په صفت دومره نه پوهیدو ،چې (په هغه زمانه کې یعنې دده په وخت کې) د پردیو استثمارګرو کړې په غوږ کې لری او که پوهیدو، نو ورته خوشاله و. چې هسې د سرو زرو کړې په غوږ کې لري، ښایي چې دده به د غلامی کړې، د سرو زرو کړې بلله. ځکه چې مالي او معنوي مرستی (د پردي استثمارګرو له خوا) ورسره کیدلې.

مګر بر عکس بایزید روښان د پردیو استثمارګرانو او د کورګانی پردی سلطنت پر ضد د پښتو تولنی له لیارې د یو واقعی او حقیقی پښتون په صفت مبارزه وکړه. که څه هم په پای کې د خپل ملی مرام ته د رسیدو په ارزو کې پوره بریالی نه شو.

# دریم فصل

## د اخوند درویزه د تبارز عوامل

که څه هم د اخوند درویزه دتبارز عوامل زیات دي، خو دده د تبارز د مهمو او سترو عواملو څخه. لومړی مهم عامل (چې هسی یو تنګ نظری او متعصب اخوند ته د پښتنو په آبائی سیمو او لرغونی تاټوبی کې د تبارز زمینه مساعده کیږي او بیا د بایزید روښان دنهضت د خنډ غوښتلو او مقابلې لپاره د عمل په ډګر کې تبارز کوی او آثار لیکل غواړي) دګورګانی مغلو امپراطوران او د دوي هر ډول ظلم او بیعدالتی وه. چې د پښتنی او افغانی غلجیانو او لودیانو شهنشاهی او سلطنت یې په زور او په لښکرکشی او جنګ او جګړې سره

غصب او دافغانانو او پښتنو آزادو قبایلو دخودارادیت حقه او روا حقوق او هم د آزادو قبایلو خودمختاری او عنعنوی ژوند یې سلب کړ او د غلجیانو او لودیانو یعنی د سلطان ابراهیم لودي سلطنت ته له سقوط ورکولو څخه وروسته، د دغو گورگانیانود امپراطوری تاسیس په هندکې او ددوی استعماری اواستثماري سلطه او په زور او بعیدالتی د چارو چلند دهندوستان په دننه او د هند د نیمې قارې په شاوخواکې (پښتونخواکابل او نور ولایتونه) په تیره بیا د همایون اواکبر د سلطنت دوری وی، چې اخوند درویزه او دده د پروپاگندي تبلیغاتو زمینه مساعده کړی او د گورگانی استعمارگرانو اود دربار له خوا گمارل شویو او راستول شویو جابرو حکمرانانو د گټو د ساتلو په منظور دده (اخوند درویزه) هلې ځلې اومنفی باقی او دده نور هر ډول تبلیغات د پښتنو په سیمو کې تبارز کوی او وروسته بیا د پښتونخواپه دننه اود پښتنو ازادو قبایلو په سیمو کې د نفاق، شقاق او تفرقه اچولو په خاطر او هم د پښتو دملی قوت او طاقت دتضعیف غوښتلو په منظور او هم د پښتنو دځینو قبیلو د مشرانو د تفوق طلبی او د گټو ساتلو له امله له یوې خوا او د داخلی فیوډالانو او جاگیردارانو د استثماری سلطې او چال چلند او د دوي د شخصی او خانواده گې گټو دساتلو له پاره له بلې خوا، داخوند درویزه پروپاگندی پانې او تبلیغاتی آثار، د پښتونخوا په دننه سیمو کې خپرېږي او لاس په لاس د هر افغان او پښتون په کور کې ویشل کیږی او لوستل کیږی او له بلې خوا بیا د فیوډالانو د ځینو قبیلو د تفوق طلبو مشرانو مرتجعانو او دگمارل شویو جابرو حکمرانانو له خوا دپښتونخوا په دننه سیمه کې د گورگانی

مغلي پاچاهانو خوريي (سيدعلي ترمذي) (چې د اخوند درويزه د هلو ځلو او دمنفي بافيو لوی محرك او مشوق او سبب و) دخپل د لاس اله او حربه (اخوند درويزه) او دده نور ملګري د پښتو ازاد و قبايلو په شمالي سيمه کې دمغلي جابرو رالېږل شويو حکمرانانو او هم د داخلي قئوډالانو له خوا تشويق، ترغيب استقبال، تمويل او حمايه کېږي چې په دې ترتيب د اخوند درويزه دتبارز لوي عامل ګرزي. حال داچې نوموړی د ګورګاني مغلو له دربار څخه دګمارل شويو مستبدو حاکمانو، درويزه ګر او هم د جابرو ملاکانو او جاګيردارانو او د ځينو پشتني قبيلو د تفوق طلبو مشرانو، او کره خورو، په تيره بيا دی د يومتنفذ روحاني سړی (سيد علي ترمذي) د دسترخوان جيره خوار شاګرد او دده د طريقت مريداو د نوموړي سړی له خوا په خلورو طريقو. خليفه او ماذون هم و چې بيا نوموړی متنفذ روحاني سړی د ګورګانيانو خور يي و.

نو ويلاي شو، چې د اخوند درويزه د تبارز لومړي عامل د ګورګاني مغلو امپراتوران وو او ددوی د امپراتوری تاسيس د پښتنو لوديانو او غلجيانو د سلطنت له سقوط څخه وروسته په هندکې او علی الخصوص د مغلي بابر څخه وروسته د همايون او اکبر په وختو کې چې دوی دواړه دمغلو پاچاهان وو. اخوند درويزه او دده د پروپاګندي تبليغاتو د پاره زياته زمينه مساعده شوه.

د پورتنيو ليکنو څخه داسې استنتاج او استدلال کيږی. چې که په هند کې، مغلي ګورګاني امپراتوری تاسيس شوې نه وای او د پښتنو دخود ارادیت حقه او رواحقوق او د پښتنو

آزادو قبايلو خودمختارۍ او عنعنوي آزاد ژوند د ګورګاني امپراتورانو «بابر» او وروسته بيا د اکبر او نورو مغولي پاچاهانو له خوا سلب شوي نه واي او وروسته بيا دوي په پښتنو باندې هر ډول ظلم او بيعدالتي، تفرقه او بې اتفاقي، تبيعض او هم يې طبقاتي تضاد د پښتنو په تولنه او تولنيز ژوند کې تشديد کړي نه واي او جابر حکمرانان يې د آزادو پښتنو خاورې ته نه واي استولي او په داخل کې يې فيوډالان او نورې مرتجعې ډلې د روښاني نهضت په مقابل کې تشويق، تحريك، تمويل او حمايه کړې نه واي، نو ولې به د پښتنو اکثريت خوارې کښان او محرومې ډلې د بايزيد روښان ترمشرۍ لاندې د ظالمو او جابرو حکمرانانو په مقابل کې درېدلې او د ظالمو ګورګاني پاچاهانو سره به يې مقاطعه کوله او د دوي دظلمونو په مقابل کې به يې کرکه او نفرت ښووه او ولې به يې د عدالت، انصاف او مساوات غوښتنه دخپل فرقه اى مسلك په مرامنامه او دعوتنامه کې ليکله او د اسلام عملي لوړو اخلاقو اود اسلامي ښيګڼو د عملي کيدو آرزو او تقاضا به يې ددعوتنامې په وسيله داکبر پاچا په عنوان ليکله او د هندوستان په لورې (اکبر) مغلي پاچا ته به يې ليږله؛

نو دګورګاني پاچاهانو د استبداد په مقابل کې د بايزيدروښان لوړ عرفاني، فرقه يز، علمي، اخلاقي، ديني عالي تعليمات وو. چې د اخوند درويزه د تبارز زمينه يې مساعده کړه. تر څو په نږدې آينده کې دی خپل تبليغات د روښاني نهضت په مقابل کې د استعماري طاقت د سلطې د پاينښت له خاطره او هم د داخلي فيوډالانو د شخصي او د دوي

دخانواده کې کټو د ساتلو په منظور، شروع کاندی، د اخوند درویزه د تبارز دوهم لوی عامل، سیدعلی ترمذی و.

دلته د لوستونکو په اذهانوکې، شایی چې دا پوښتني وګرزي او ددې کتاب هر لوستونکی له ځانه سره دا رنګه سوالونه مطرح کاندي، چې نوموړی سړی کله او په کوم وخت کې پیدا شو، او ولې یې د اخوند درویزه د تبارز د یو لوی عامل په توګه د عمل په ډګر کې خپل سر راپورته کړ، ددې پوښتنو ځوابونه ساده دي، کله چې په هندوستان کې د ګورګانی مغلو دامپراتورانو په لړ کې جلال الدین اکبر د سلطنت پر تخت کښیناست، نو په هغه وخت کې سیدعلی ترمذي په هند کې د یوه روحانی سړی په جامه کې درباری ژوند لاره، پلار یې د مغولی پاچاهانو (بابر - اکبر او مخصوصاً همایون) په دربارونو کې مقرب و او د مغولی پاچاهانو سره یې دخپلوی او خویشاوندی داړیکو لرلو په مناسبت مستقیمې درباري اړیکې او دوستانه فامیلی، سیاسی او لښکری ارتباطات درلودل. لکه څنګه چې د همایون پاچا د سلطنت په زمانه کې نوموړی (د سیدعلی پلار) په لښکر کې د افسر په نامه، د وسله وال قوځ ستري دندې سرته رسولې او وروسته له هغه کله چې همایون پاچا د افغانی شیرشاه له خوا ماتې ومونده او د ایران لوری ته وتښتیدو، همدغه دسیدعلی پلار دهمایون سره له هندوستانه ایران ته وتښتیده او دنوموړی زوی په هند کې پاتې شو. په همدې وخت کې چې د اکبر پاچا د سلطنت زمانه وه. دلته د پښتونخوا په سیمو کې یو پیاوړې مفکر ملي قاید، سیاسي، عرفاني، ادبي او هم حربي لوړ شخصیت (بایزید روښان) د پښتو ملی‌مشر، په پښتونخوا او د

پښتنو آزادو قبایلو په سیمو کې د پښتنو د ستر لاربښوداو ملي مبارز په عنوان دعرفاني او روحاني شخصیت په بڼه دخپل سیاسي حرکت او ملي مبارزې دتحقق اوعملي کولو په منظور (چې د مغلي استعمارگرو پاچاهانو داستعمار دسلطې نه خلاصول او د داخلي او خارجي استثمارگرانو له استثمار نه د پښتونخوا دټولو سیمو دخلکو اود ازادو پښتنو قبایلو ژغورل د دوی د ټولو د آزادیو بیرته لاس ته راوستل او هم د داخلي فئوډالانو سره په عملي ډگر کې د ملي مبارزې آرزو دسرته رسولو په منظور او وروسته بیاد پښتني شاهانو د تیرې دورې د برم اوعظمت د بیرته ژوندي کولو څخه عبارت وو) هسې یو پښتون او یو داسې عالي سیاسي او دملي مبارزې د هدف لرونکي مبارز او لوی پښتون شخصیت د علمبردار په توگه په نیغه شمله. سر راوچت کړ. او د زړو استعمارگرانو په مقابل کې یې د خپل نهضت د اعلامولو له لیارې او د تصوف او عرفان د چار چوب او مسلك د چوگات بندۍ په حربې سره د خپل پښتني پیروانو اود پښتونخوا د سیمې د اکثریتو مظلومو او محرومو خواري کښو بزگرو او عوامو ډلو. په اتفاق او پیوستون سره د ظالمانو د مقاطعې او دمقابلې او دټولو پښتنو د خود ارادیت د روا حقوقو د بیرته په لاس راوستلو او د آزادیو گټلو لپاره دعمل په ډگر کې پښه کیښوده او د هند په نیمه وچه. یعنې په منځنۍ اسیاکې گاونډیو ملکونو او داخلي ولایتونو او سیمو ته د امیرانو. پاچاهانو.حکمرانانواو د قبیلو او د ملیتونو د مشرانو په نامه او عنوان دخپل مسلك مرامنامه: (د حقتعالی په وحدانیت ایمان لرل. شریعت. طریقت حقیقت. معرفت. قربت. وصلت. وحدت. سکونت او تر ټولو

لومړي د شريعت درناوی اومنل، يعني د شريعت امر او نهی منل او پرې عمل کول. د ديني علومو يعني د عقايدو علوموا داسلام او عرفان د لوړو اخلاقو نظري او عملي زده کړې، او وروسته بيا دنيوي علومو څخه لکه اقتصاد او تجارت او نورو علومو او فنونو څخه ګټوره استفاده کول، د هر ډول تقوا او عدالت او د مساوات او ديموکراتيکي ټولنيز ژوند تامين او تعميم غوښتل. دنژادي تبعيض او د هر ډول تفوق طلبيو او هم له ظلم نه، نفرت ښودل او دظالمانو سره مقاطعه او پرهېزه او وروسته بيا د ظالمانو سره په هر ځای کې چې وی، مقابله کول او د ويش په باب د شيخ ملي د دفتر د اساساتو اومقرراتو دود ته په عملي توګه درناوی کول...) او داسې نور داسلام حقيقي ښېګنې او د اسلامي عرفان د لوړ و عملي اخلاقو محاسن او مزاياوی، د مکتوبي دعوتنامو په چوکاټ او چوکاټ بندی کې د داخلي ولايتونو د مشرانو، خانانو، ملکانو په نامه او هم د اميرانو او پاچاهانو په عنوان جلاجلا واستولې چې د هغو له جملې ته دوې دعوتنامې يې هندوستان ته واستولې چې يوه دعوتنامه د اکبرپاچا په نامه او عنوان وه او د روښان بله دعوتنامه د سيدعلي ترمذي (د ګورګاني پاچاهانو خوريې) په نامه او عنوان وه.

کله چې د بايزيد روښان دعوتنامه (چې د اکبر پاچا په نامه وه) هندوستان ته ورسيده او دګورګاني مغلو نومړي پاچا د بايزيد روښان دعوتنامه ولوستله، نو اکبر پاچا سملاسي د بايزيد روښان اصلي ملي هدف او دده سياسي ټکي ته ملتفت شو او د څه خپګان وروسته پوه شو چې د روښان دعوتنامه دده د سلطنت او سياست سره ډکه وهی او ټکر خوری، ځکه دا چې

د روښــان مذهــب او دده تصــوفي اوعرفانــي مســلك د اســلام د اخلاقــي او عرفانــي فلســفې پـر بـنا متكـي دي او هـم د اسـلام د شـريعت د احكـامو سـره سـم او دمحمـدي شـريعت او هـم دحنفي فقـه پـر اساسـاتو او اركـانو. ټيـنګ پايـه دار او اسـتواروالۍ دي او هـم د روښـان عرفانـي مسـلك نـژادي. قبـيلوي او پاچـاهي لوړتـيا او تقـوى طلـبى نـه مني، او هـم د خـداى تعـالى پـه مخلوقـاتو كـې (انسـان) عـالى مرتـبه او پـر مځكـه بـاندې د خلـيفه الله پـه خاطـر، لـوړ مقـام او د درنـاوي، حـق لـري او بـنى آدم ډيـر مكـرم دي. پـر بـنى نـوع تحقـير توهيـن، ظلـم او بيعدالـتى كـول، جايـز نـه بلكـې وحشـت او د سـرټيټوب څخـه لـيري ده او د هغـه پـر ځـاى بـايد دسـولې. عدالـت او د ديموكراتـيكى قوانيـنو لـرل او د هغـو قوانيـنو انفـاذاو تطبـيق كـول او هـم د ديموكراتـيك ژونـد تـر سـيورې لانـدې ټولنـيزژوند او ټولنـيزې مرسـتې او تعـاون د عامـه خلكـو ژونـد، پـه امـن اود پرمختـګ هـر ډول مـادي او معـنوي زمينـه برابـره اومدنيـت جـارې وى تـرټولو خبرو اوانسـانى لارښونـې نـه مهمـه داچـې ټـول انسـانان شـته مـن. بيـنوا، پاچـا، فقـير، حـاكم. محكـوم، آمـر، مـامور، اتـل، نـاتوان او ضـعيف، سـپين پوسـتكى، تـور پوسـتكى. عـرب، عجـم، پښـتون، تاجـيك، اوزبـيك، مصـلى، خـان، مـلاك، بزګـر، ملـك او هـم د قبـيلى مشـر او داسـې نـور ټـول بني نـوع دخـداى تعـالى پـه نـزد او دهغـه د واحـد خـالق پـه حضـور، يـو شـى دي او دوي يـو لـه بلـه هـيڅ كـوم توپـير نلـري. خـو توپـير، تفـوق او انسـاني كرامـت د هغـو انسـانانو او بشـري ټولـنو يـاد هغـو وګـړو يـا د هغـه چـا پـه برخـه وي چـې د عمـل پـه ډګـر كـې صـالح اعمـال سـرته رسـوي او همـنوعانو تـه خـير رسـوونكى او مرسـتيال وي او د اسـلامى احكـامو او دشـريعت د

امـر او نهـی سـره سـم. لـه نواهـیو او هـر ډول حـرام څخـه ځـان او نفسـانی هـوا او هـوس ژغـوري او تقواکـوي، پـر چـا ظلـم نـه کـوی او د ظالمـانو لـه ظلمونـو څخـه ځـان ژغـوری او دحـق او د خـپل شخصـي او اجتماعـي حقوقـو څخـه دفـاع کـوی، پـر خـپل نفسـانی هـواو هـوس بـاندي پښـه ږدي او ګواکـې کـه یـو قـدم پـر خـپل نفـس ږدي. دوهـم قـدم خـداي تـه نـږدي کـیږي، د انسـان شـرافت پـه علـم او ادب دي، نـه پـه مـال او نسـب. پـه هـره ټولـنه کـې چـې انسـانان ژوندکـوي، دوي پـه مـادي او معـنوي نعمـتونو کـې مسـاوي حقـوق لـري، همدغـه رنګـه د نـر او ښځـی تسـاوي حقـوق او هـم داسـلام پـه شـریعت کـې د یـو فقـیر سـړي اولاد د پاچـا او د مـلاك او دخـان د اولاد سـره پـه مجـازاتو او پـه مکافـاتو کې،مسـاوی حقـوق لـري (یعـنی د هـر جـرم او ګـناه د شـرعي دجـزا پـه انـدازه، چـې پـر مـتهم بـاندي دهغـه جـرم، ګـناه اوجنایـت ثابـت شـي. نـو کـه مجـرم او ګـناه کـار د پاچـا زوي وي او کـه د فقـیر یـا د مـلاك) نـو د شـریعت د (حـد) او دجـزا د ټـاکلي انـدازې تطبـیق پـر دواړو بـاندې پـه مسـاویانه توګه د محمدي شریعت احکام موکد دي...)

ځکـه، نواکـبر پاچـا د بایـزید روښـان دعوتـنامه د ځـان لـپاره یـوه اخطـار نامـه وګڼلـه او پـوه شـو چـې د بایـزید روښـان دعوتـنامه دده شخصـي، فامیلـي، سیاسـي او سـلطنتي ګټـو تـه تاوانونـه او خطـر پـیښوي او ښـایی چـې پـه آیـنده کـې بـه دده اسـتعماری سـلطنت سـلطه، عـیش او عشـرت او اسـتثماري قـدرت او واکمـنی سـرته ورسـیږي اونـور بقـا او پایښـت بـه ونـه مومـي. د بلـې خـوا اکـبر پاچـا پـوره پوهـیده، چـې د آزادو قـبایلو پښـتانه، د پښـتنو د نـورو سـیمو او نـورو ملیـتونو وروڼـو سـره یـو ځـاي د دعوتـنامې د مبـتکر او ملـي مـبارز (بایـزید روښـان) تـر مشـرۍ او

لاړښودنې لاندې سره راټولېږي. يو موټی کېږي او په پای کې دهرې ورځې په تېرېدو سره، ددوی د اتفاق ملی توحيد، پيوستون او يووالی څخه يو لوی ملی طاقت جوړېږي اودده د پاچاهی اواستعماري سلطه او استثماري اتاريتې او سياست ته خاتمه ورکوي او دده مقبوضه قلمرو ته لوی خطر دی او هم دده جعلی اوسياسي (دين) ته، چې ده د ځان له خوا د خپل سلطنت د پاينښت لپاره د (دين الهی) په نامه ايستلی و د بايزيد روښانی عرفانی او فرقه يې مسلك او مرامنامه دده د (دين الهی) د پاليسيو سره ټکر خوري او دده د (دين الهی) د ټولو مشی او د لارښوونی منافی دی. نو ډېر يې ځان بايلود، سملاسی لښکر کشي يې ښايی لازمه ونه ګڼله. خو دده لومړنی تدبير د روښانی نهضت په مقابل کې داو، چې د يو داسې روحانی او ملی مشر، يعنی د پير روښان په مقابل کې داسې يو مخالف روحانی سړی د پښتونخوا سيمې ته ورولېږي، چې له يوې خوا متنفذ روحانې اومقتدا او د صلاحيت او هم د دربار له خوا با اعتباره او هم باوري استاځی وی او د بلې خوا د پښتونخوا په سيمو کې په هره وسيله، چې کېږي د پيری او مريدي او فرقه يې متضاده او متخاصمه ډله، جوړه کاندي تر څو په دې ترتيب سره ښايی، چې د خپل لېږل شوي روحانې سړی په وسيله او د ده د پيروانو د پروپاګند او تبليغاتو له لياري وکولای شي د روښان اود روښانيانودنهضت مخه ونيسی او د عاجل تجويز په منظور. د پښتنو د پرمختګ او د دوی دعالي اهدافو تحقق مونډل ګوندې خنډ شي او وروسته بيا به د لزوم په صورت کې. د شهنشاهی په رای امر او فرمان

سره د لښکر او د نیزې په زور، پښتانه آزاد قبایل سرکوب او مغلوب شي.

نو هغه و، چې اکبر پاچا د بایزید روښان د مقابلې او دده د نهضت د خنډ کولو او د روښانیانو د پرمختګ د بندیدو لپاره. سیدعلي ترمذي مناسب وګانه، ځکه چې نوموړي سړي له یوې خوا دګورګاني مغلو د سلطنتي کورنۍ سره د خویشاوندۍ ارتباط لاره او د ګورګاني پاچاهانوخوريي اوهم د اکبر پاچا اعتباري، باوري او مقتدر او هم د صلاحیت څښتن وړ استازی و او له بلې‌خوا سیدعلی یومتنفذ روحاني سړي و، نوځکه اکبر پاچا خپل نوموړی خوریې د ځان له خوا خوښ کړ، او په پټه او مخفي توګه يې د بایزید روښان په مقابل کې مناسب وګاڼه.

په همدغه وخت کې د بایزید روښان بله دعوتنامه، چې د سیدعلي په نامه وه. (د اکبر پاچا ددعوتنامې د رسیدو سره جوخت) نوموړی ته په هندکې وررسیده. کله چې سیدعلي د بایزید روښان دعوتنامه ولوستله، نو پوره پوه شو، چې د روښان د مسلك د مرامنامې متن د اسلام د سپیڅلي مبین دین د اساساتو او احکامو سره سمون لري او دده روحاني تفوق طلبي نه منی او دده حرص اوآز، طمع او ورياخوري او دده نوری داسې شخصي منافع نفی کوي او له بلې خوا د مغولي شاهانو د نابودۍ زمینه برابر وي او په هندوستان کې له دې وروسته ګورګاني پاچاهان. چې دده ماماګان وو، خپل استبدادي سلطنت ته پایښت نشي ورکولاي او هم به د دوي استعمار اواستثماري قدرت ژر له منځه ولاړ شي، نو ځکه سخت متاثر او غمجن شو. سملاسي يې خپل مرید او شاګرد،

اخونـد درويـزه تـه ( چـې دده پـه مجلس کـې حاضـر و ) داسـې وويـل:
((پـر پـښتـنو لويـه بـلا نــازلـه شوه... ځکـه چې په دې سيمه کې
د اســلام پـاچـا نـشـتـه، چـې داســې ملحـد او مـرتد پــه سـزا
ورسـوي)).[1] پــه دې توګــه، سـيدعلي تـرمذي خـپل شـاګرد او
پـيرو (اخونـد درويـزه) تـه د بايـزيد روښـان لـوړ ملـي، سياسـي،
عرفانــي او ادبــي عــالي شخصـيت، تـيـټ او وړوکـي وښـوده او
خـپل کـرکه او نفـرت يـې د روښـان پـه هکلـه ورتـه ښکـند کـړ او پـه
خـپل سياسـي هوښـياري او چـال او مکـر سـره يـې د اخونـد درويـزه
احساسـات (چـې نـو بـالغ او د دينـي علومـو خـام دينـي طالـب العلم
و) د روښـان اوروښـاني نهضـت پـه ضـد وروپـارول او خـپله رائـه او
شخصـي نظـر يـې پـر ده ومانـه پـه پـاي کـې دواړو (استـاد او شـاګرد)
تصـميم ونـيوه چـې ژر تـر ژره د بايـزيد روښـان سـره لـه نـږدې نـه، د
پښـتونخوا پــه سـيمه کـې وګـوري او دوي بايـزيد روښـان تـه پـه
فـرقه يـې مباحـثاتو او عـرفاني مجادلـه او تصـوفي مقايلـه کـې
ماتــه ورکــړي او هــم دده پښـتـانه مـريدان او پـيروان لــه ده نــه
راوګـرځوي او وروسـته بـيا دوي او نـور ټـول پښـتانه يـو لـه بلـه سره
پــه نفــاق او تفــرقه کــې واچـوي او پــه دې توګــه د پښـتــنو آزادو
قــبايلو د اکثريــت ډلــې، چــې د روښـــان ترمشـــرۍ او لارښودنـــې
لانـدې د پښـتـونخوا پـه سـيمو کې سـره راغونـدې او يـو موټـي شـوي
دي او نـن سـبا د هغـوي ځخـه او هـم دهغـوي د اتفـاق او يووالـي او
پيوسـتون ځخـه لـوي ملـي طاقـت جوړيـږي، يـو تـر بلـه سره ضـعيفي
کاندي او سره خوري او تيت يې کړي

---

(۱) مخـزن، د اخونـد درويـزه اثـر، و پروفيسـور تقويـم الحـق کاکاخيل پـه
زيار، پښتو اکيډيمي پېښور ۱۹۶۷

هغه و، چې سیدعلی ترمذي د ځو ورځو له تیریدونه پس.
د اخوند درویزه سره یو ځای داکبر پاچا ملاقات ته ځی او د لاژمو هدایاتو د اخیستلو نه وروسته له هندوستان نه، د پښتونخوا سیمې ته (په شمالی کوهستان کې د میشته کیدو په قصد) راځی. سیدعلی ترمذي د لارې په سفر کې دخپل پلار (قنبر) نومی څخه د سرو زرو او سپینو زرو دوه همیانی په لاس راوړي. که څه هم د لارې په اوږدو کې د شیرشاه افغان افغانی لښکر هغه دوې دکې د سرو او د سپینو زرو همیانی له سیدعلی ترمذي څخه اخلی، خو د شیرشاه لښکر، سیدعلی ترمذي ته کوم اذیت او ځانی تاوان نه رسوي بلکې خوشی کوي یې. دا ځکه چې د شیرشاه لښکر سیدعلی ترمذي ته پیژانده او پرې نه وو خبر، چې دي د ګورګانی پاچا هانو خوریی ده.

که څه هم سیدعلی ترمذي په تش لاس او خالی‌جیب او د افلاس په حالت دلته رارسیږي مګر دمالی نشتوالی سره سره چاته نه محتاج کیږي او دې ته نه اړکیږي او هم نه مجبور کیږي چې د خوراکی موادو د اړتیاوو له پلوه چاته لاس اوږد کی او فقر اوخواست دچانه وکړي ولی، په څه علت؟

دا ځکه. چې دګورګانی پاچاهانو، له دربار نه ګمارل شوي جابر حاکمان او حکمرانان په پښتونخوا کې له یوې خوا، او داخلی فئوډالان او هم ځینې ملکان او د ځینو پښتنی قبیلو تفوق طلبه مشران د سیدعلی ترمذي سره پیوست. مل. یو مفکوره او یو لاس وو او ده هم هرومرو په مخفی او پټ ډول د مغلی دربار ګمارل شویو جابرو او ظالمو حکمرانانو ته، ځان د مغلو د سلطنتی کورنی د خوریې په صفت معرفی کړي و. نوځکه نه یوازې ده د ژوندانه د معیشت د تامین له پلوه کوم

تکلیف او ستونځې ونه لیدې، بلکې ملکانو، فیوډالانو او د ځینو قبیلو تفوق طلبو مشرانو، سیدعلي ترمذي او اخونددرویزه په ښه توګه استقبال کړل د دوي دژوندانه وسایل او د معیشیت خوراك، جامې، تاتوبی او هم د اخوند درویزه لپاره یې د تبلیغاتو زمینه ور مساعده کړله. وروسته بیا سیدعلي ترمذي ته د پښتونخوا سیمې د قبایلو یو تن ملك خپله لور ور په نکاح کړه.

نو هغه و، چې سیدعلي ترمذي د پښتونخوا په شمالي کوهستان او د یوسفزو قبیلې په شاوخوا کې خپله لاسه تڼکه (چې په وړیا توګه یې لاسه ته راوستلې وه او دده دهرډول اوامرو مطیع او فرمانبرداره و او هم دده صادق شاګرد او اخلاصمند مرید و) د خپلو شخصي منافعو او دده د ماماګانو دهر راز منافعو دساتلو په منظور. کوك او ډك کړ هغه و چې دده صادق شاګرد (اخوند درویزه) د روښان او د روښانیانو د نهضت د خنډ کیدو لپاره د سیدعلي ترمذي او دده دماماګانو په ګټو کله کله په غیر شعوري توګه او زیاتره په شعوري او قصدي توګه په پښتو، پارسي، عربي او هندي ژبو په پروپاګند او تبلیغاتو شروع وکړه او د روښان او روښاني او د دوي د ډلې نورو پښتنو پیروانو ته یې په (الحاد، کفر، زندیق، اباحتي، لعنتي، باغي، فاسد، اشرار، شرالبیان، خیرالبیان) او داسې نورو بدو او رکیکو کلماتو او الفاظو سره په ژبه او په قلم خطاب کاوه هر ډول افترا او اتهام یې پر روښان او روښاني ډله لګاوه.

د عمل په ډګر کې د اخوند درویزه د تبارز لوی عامل دده دژوند د نیرنګونو ستر لاربښوداو غټ ملګری، سیدعلي ترمذي و. د اخوند درویزه دتبارز بل لوي عامل، بایزید روښان او د

ملي نهضت د نوموړي د تبارز څرګندوی دی. داځکه که روښان پخپل مسلك کې ابتکار نه واي کړی او اسلامي تصوف او عرفان یې دپخواني مقید چوکاټ څخه نه واي ایستلی او تصوف ته یې تازه روح اوژوندی ساه نه واي بخښلی او په شریعت، طریقت او معرفت کې یې د اسلام اصلي فلسفه نه واي بیان کړې او هم یې د اسلام ددین ښیګڼې، محاسن او اصلي او حقیقي بڼه او څیره نه واي ښودلې، مساوات، دیموکراتیك ژوند، عدالت او تقوا یې په عملي توګه نه واي ښودلې، نژادي تبعیض، تفوق او تفوق طلبی او ظلم او ناروا کارونه یې د خپل مسلك په چوکاټ کې په نظري اوعملي توګه او په ټولنیز ډول دعمل په ډګر کې نه واي تمثیل کړي، نو ولې به مقابل لوري دخپلو شخصي منافعو د ساتلو لپاره راز ،راز منفي عکس العملونه ښودلي وو، لنډه داچې که بایزید روښان دخپل ایماني، وجداني، ملي او سیاسي مرامونو او دندې د سرته رسولو په منظور دخیرالبیان کتاب (هغه هم په څلورو ژبو) لیکلی نه وای نو ولې به اخوند درویزه تبارز کولو، او ولې به یې د (مخزن) کتاب د (خیرالبیان) کتاب په مقابل کې لیکلو؟

نوویلای شو، چې که بایزید روښان او دده د آثارو په لړ کې مهم اثر (خیرالبیان) نه واي. نو هله به اخونددرویزه او دده (مخزن) کتاب چا نه واي لیدلاي د اخونددرویزه د تبارز نور عوامل پښتانه فیوډالان، ګمارل شوی جابر حاکمان اود پښتنود ځینو قبیلو تفوق طلب مشران لکه ملك تور او ځینې نور ملکان وو، چې دده د لمسونې اوتحریك تشویق، ترغیب، تقویه، تغذې، مالي تمویل وسیلې او اسبابونه یې برابر کړل، نو ځکه افضل خان ختك تاریخ مرصع لیکونکی او مورخ، چې دختیکو تاریخ یې داتلسمې پیړۍ په سر کې په پښتو ژبه لیکلی

دی دخپل نیکه ملك تور په هکله داسې بیطرفانه او په علمي جهان بیني سره لیکي: (زما د مور له خوا نیکه ملك توراورکزي په اول کښې د روښانیانو په حرکت او نهضت کې ګډون کړي و او بیا یې دغه حرکت پرېښوداو د مغلو په خوا لاړ [1] وروسته بیا افضل خان ختك د ملك تور برخورد او مباحثه، چې د (احداد) سره یې دخبرو په وخت کې کړېده داسې بیانوي. (زه چمتو یم، چې ستا هر فرمایش ومنم مګر د خپل کور او پتې اختیار نه درکوم).

د ملك تور د وینا څخه دامعلومېږي، چې د پښتنو دعنعنوي او لرغوني ویش څخه یې مخالفت کاوه یعني ملك تور غوښتل، چې د قبیلوي لوړ تیا (قبیلوي تفوق) په خاطر ځان د ویش د سیستم څخه چې په هغه وخت کې مروج و، مستثنی کړي مګر په مقابل کې (احداد) دې استثنا ته قایل نه و.

د پورتنیو مستندو مثالونو څخه په ډاګه څرګندیزي، چې د پښتنی قبایلو د ځینو قبیلو تفوق طلب مشران، ملکان، او خانان د اخوند درویزه د تبارز بل عامل و.

د شوروي اتحاد ختیځ پیژندونکی پروفیسر اسلانوف د اخونددرویزه په هکله، چې زما دپورتنی څیړنې سره اړیکې لري پخپل تحقیقي اوعلمي اثر(دروښانیانو ملی نهضت)کې داسې لیکي:

((د روښانیانو ستر مخالف، اخوند درویزه و. دی د فیوډالي او مغلي پادشاهانو د هغې اتحادیې مشر و چې د مذهب د نامه لاندې د روښانیانو په مخالفت او جګړه بوخت و ...)) [2]

---

(۱) تاریخ مرصع افضل خان ختك اثر، سریزه ددوست محمدخان کامل. یونیورسټی بك ایجنسی، پېښور، ۱۹۷۴

(۲) د روښانیانو ملی نهضت، د شوروي اتحاد ختیځ پیژندونکی و استاد اسلانوف اثر او د سرمحقق محمد اکبر معتمد ژباړه ۲۴ مخ، دولتی مطبعه د چاپ کال ۱۳۵۳ هـ. ش ۱۹۷۴ ع)

# څلورم فصل

## له بايزيدروښان سره داخونددرويزه دمخالفت علل:

مخکې له دينه چې د اخوند درويزه اوروښان د مخالفت علل وښودل شي او په مدلل او مستند ډول سره اثبات ته ورسيږي لازمه ده، چې له روښانيانو سره د اخوند درويزه، اخون پنجو او دځينو نورو د مخالفت علتونو په باب د دوي دمخالفو اوموافقو ډلو نظريې دهغوي له آثارو څخه، چې زموږ په لاس کې شته. دلته پخپله ځيرنه کې راوړم او ويې څيړم.

سر محقق محمد صديق روهي په خپل (ادبي څيړنې) [1] نومې کتاب کې د اخوند درويزه او بايزيد روښان دمخالفت د

---

(١) محمد صديق روهي، ادبي څيړنې، کابل، د لوړو او مسلکي تحصيلاتو مطبعه، ١٣٦٠ کال، ص، ١٣٦

علتونو په باب د ځينو څيړونکو او ليکوالو دوه ډوله نظريې په لنډه توګه، ټولې کړي، څيړلي او دخپل نظر د څرګندولو سره سره يې کښلي دي چې د نومورې ادبي شخصيت دکتاب په حواله به زه دلته لزوماً دده قول او نظر په لنډه توګه ولیکم او وروسته له هغه به د اخونددرويزه دمخالفت د علتونو په هکله چې له روښان او روښانيانو سره يې لرل په دې باب به خپل قاطع نظر ځرګند کړم

نومورې سرمحقق له روښانيانو سره د اخوند درويزه، اخون پنجو او ځينو نورو دمخالفت د علتونو په باب د ليکوالو دوه ډوله نظريې داسې ليکي: ((لومړي نظريه دا ده چې له روښانيانو سره د نومړو اخوندانو مخالفت صرف مذهبي جنبه لري، بايد هيڅ ډول سياسي رنګ ورنکړ شي. دوهمه نظريه وايي، چې روښاني نهضت يو سياسي جنبش و او ددغه نهضت مخالفان په يوه يا بله بڼه د ګورګاني امپراتوري پلويان او نماينده ګان وو.

سرمحقق روهي پخپل ((ادبي څيړنې)) اثر کې لومړي د هغې ډلې ليکوالو نظر يې راوړي دي، چې د اخوند درويزه موافقې ډلې يا د اخونددرويزه د ارادتمندانو له ډلې څخه دي. لومړی د کاکاخيل نظريه. کاکاخيل د اخوند درويزه د مخزن کتاب په سريزه کې داسې ليکي: اخوند درويزه پخپله دا خبره تصريح کړې ده، چې له بايزيد روښان سره دده مخالفت يوازې پر ديني اصولو بناء دی او د اهل سنت او جماعت له عقايدو څخه مدافعه کوي. احتمال لری چې ((د بايزيد او اخوند درويزه جنګ او مخالفت خالص مذهبي و او د هغې شاته بې له مذهبي جذبې نه بل څه نه وو.))

وروسته بيا د ادبي څېړنې دکتاب مؤلف ليکي، چې کاکاخيل فکر کوي چې د بايزيد روښان او اخوند درويزه تر منيځ شخړه په اصل کې دمذهبي فرقو تر مينځ شخړه ده ځو کوم وخت، چې په افغانانو کې (د قوميت احساس راويښ شو او د خپلو ورکو مشرانو تلاش يې شروع کړ نو د تاريخ په پاڼو کې يې يو نوم دا هم ومونډ په دې نوم. مو دې تيرې شوي وي او د پښتنولی په لاره کې بهيدلی وينو د دې نوم نه چاپيره، يو شپول جوړ کړي و، دده د اولاد قرباني ښکاريدي، د هغوي همت او جراءت ښکاريده، دهغوی نه به درويزه ځيني کترې او کنايې اوريدلې وی او يا به پخپله دې ټکي ته ملتفت شوی وي، چې د روښانيانو پر ضد دده د تبليغاتو انګيزه به بل ډول هم توجيه کيدی شي.

درويزه دخپل ځان د تبرئه کولو د پاره کوښښ کړي دی او خپله انګيزه يې د روښانيانو په مخالفت کې داسې بيان کړې ده. درويزه چې څه بيان کا واړه دين د پاك نبی بيانوينه. پښتانه په بله ژبه نه پوهيږي. ځکه دی يی په پښتو وروښيينه. واړه دين د پاك نبی بيانومه وپوهيږي مؤمنانو. ددې پاك نبی له د پته په دا خپله ژبه پوه شی. افغانانو غرض می پکښی نشته په دا خپله ژبه پوه شئ افغانانو بل غرض مې پکښې نشته مګر داچې شفقت کړم پرعاميانو هرچې داوريې نه وی څه تهمت را باندي وايي هغه کس دي ودريږی له بې دينو له بې ايمانو.)

په بل ځای کې اخوند درويزه، د (مخزن الاسلام) دتاليف سبب داسې ښودلی دی. چې ګويا دده په زمانه کې يو پير پيدا شوي دی، چې خلك بې لارې کوي او پښتانه پر ځان راغونډوی. نو ددې دپاره، چې خلك له دغه (تاريك) پير څخه بيزاره کړی

او سمې لارې ته یې راوبولي. د (مخزن الاسلام) په لیکلو یې لاس پورې کړ.

وروسته بیا نوموړي سرمحقق پخپل ادبي څېړنې اثر کې داسې لیکي: ((د مخزن مقدمې لیکونکي کاکاخیل زیاتوي، چې دده د تعلیماتو نتیجه دا شوه، چې اخونددرویزه (رح) ته خلکو په بل نظر کتل شروع کړل او دې اختلافاتو ته یې د سیاسي اختلافاتو رنګه ورکړ. او کوم وخت چې د روښان کتابونه لاس ته راغلل نو دا خبره اثبات ته ورسیده، چې د روښانیانو پر ضد د درویزه تبلیغات بې اساسه نه وو. ځکه د هغه په تعلیماتو کې ځینې داسې ټکي وموندل شول چې د اهل سنت او جماعت د یوه متشرع عالم له خوا ګوته ورته نیول کیدي شي)).

وروسته له هغه سرمحقق پخپله ادبي څېړنه کې له ځانه سره داسې پوښتنه طرح کوي: (که فرضاً مونږ دکاکاخیل خبرې ومنو، نو آیا د احتماً ددې معنا لري، چې (د بایزید او اخوند درویزه مخالفت او شخړه. خالص مذهبي وه اود هغې شاته د مذهبي جذبې نه پرته بل څه نه وو؟)) کاکاخیل د پدیدې او ماهیت او همدارنګه دانګیزې او علت ترمینځ توپیر نه دې کړی، په دې شك نشته، چې د بایزید روښان او اخوند درویزه ترمینځ د عقیدې پر مبنا ځینې اصولي اختلافات موجود وو، چې د هغو نمونې په هر وخت او هر ځای کې لیدل کیږي. خو دا ددې معنی نه لري، چې ددغو اختلافاتو منشاء دې اجتماعي او سیاسي اړخ ونه لري.

مونږ په قطعي توګه نشو ویلای، چې د بایزید روښان، د تعلیماتو هغه مفکوره په د مخزن الاسلام دتالیف یوازینی

انګیزه وي او ددغې انګیزې تر شا به کوم علت نه وي پروت انګیزه او علت یو تر بله توپیر لري.

په همدې ترتیب د روښاني نهضت دخیرونکو په عقیده، له روښانیانو سره د اخوند درویزه د دښمنۍ انګیزه فرقه یې (مذهبي اختلافات) او علت یې سیاسي دی. پخپله د کاکاخیل له لیکنو څخه هم تر یوې اندازې پورې ددغه مطلب استنباط کیدي شي. مثلاً دی لیکي: ((که بایزید خپل تعلیم ترخپل تولي پورې ساتلی وی، نو شایدچې د چا ورته ډیر فکر شوي نه واي.)) خو ده دخپلو تعلیماتو د اثبات د پاره هرچیرې پیغامونه واستول او دنهضت شکل یې ورکړ چې دده دغه حرکت، عکس العملونه راوپارول او په دي جمله کې سیدعلی ترمذی، مشهور په (پیر بابا) او دده مرید او خلیفه اخوند درویزه د روښانیانو پر ضد د مخالفت جنډه پورته کړه. سیدعلي ترمذي د ګورګانیانو خوریې او دګورګاني پاچاهانو له مقربینو او معتمدینو څخه و. بله داچې د جلال الدین روښاني له ماتې نه وروسته اخونددرویزه هم خپلی لیکني بس کړي. تر دې وخته پورې، ده د مخزن الاسلام نه علاوه، د ارشاد الطالبین، تذکره الابرار و الاشرار او ارشاد المریدین په نامه کتابونه لیکلي و. کاکاخیل لیکي (معلومیږي چې دجلال الدین نه پس ددې تحریك د سیاسي اړخ سره داخوند درویزه (رح) څه خاصه دلچسپي نه وه پاتې شوې. د (۱۰۲۱ هـ - ۱۶۱۲) کال نه پس د اخوند صاحب د تحریر څه پته نه ده لګیدلې او اخری عمر یې په مشاهدهء جمال اواستغراق کې تیر شوی دی.))

په دې اساس، کاکاخیل اعتراف کوي، چې اخوند درویزه ګویا د روښانیانود ماتې تر وخت پورې د هغوی له سیاسي

تحريك سره خاصه دلچسپي درلوده (يعنې دهغو د سقوط او زوال سره يې دلچسپي درلوده) او له هغې وروسته يې قلم په قلمدان کې کېښود.

وروسته له هغه سرمحقق روهي داسې ليکي: البته لکه څنګه چې د انصاف تقاضا ده دا هم بايد ووايو، چې درويزه په دې وخت کې يو اتيا کلن و او غالب احتمال دادی، چې ده به د زړښت او د سن د کهولت په سبب خپلې ليکنې بس کړې وي. سربيره پردې داهم څرګنده ده، چې د جلال الدين له ماتې نه وروسته هم روښانيانو خپلې مبارزې ته دوام ورکړی دی او له صحنې څخه نه دي وتلي، دا احتمال هم شته، چې درويزه دې په اخر عمر کې عرفان ته متمايل شوي وي او د روښانيانو سره مجادله دې ورته بې ثمره، يا بې لزومه بريښيدلې وي. او يا داچې دده (خدمتونه) دې په مناسبه توګه نه وي تقدير شوي او د رياضت لارې ته دې راغب شوی وي. داهم کيدی شي، چې ده به يوازې په تقرير او شفاهي تبليغ بسنه کړې وي او د ليکلو چارې به يې خپل زوی کريمداد ته ور پرېښيوې او دا وروستۍ خبره نسبتاً موثقه ښکاري.)

په پای کې لومړي سرمحقق دکاکاخيل د ليکنې په باب داسې رڼا اچوي او ليکي، چې د کاکاخيل دلايل دعقيدوي اختلافونو د اثبات د پاره کافي دي، خو نومړي دلايل د سياسي علتونود نفي کولو د پاره کفايت نه کوي. البته ددې بالعکس خبره هم سمه نه ده. يعنې داچې د بايزيد روښان اواخوند درويزه دمخالفت وجه فقط او فقط سياسي وه او هيڅ ډول مذهبي جنبه يې نه درلوده.

د کاکاخیل تـه وړانـدې عبدالحلیم هـم پخـپل اثـر (روحـانی رابطـه او روحـانی تـړون) کـې همـدې مطلـب تـه داسـې اشـاره کـوي: (د اخونددرویـزه پـه زمانـه کـې، چـې هـر څومـره داسـې پـیران وو. چـې د عقیـدې پـه لحـاظ د اهـل سـنت و الجماعـت د عـام مسـلك خـلاف وو او ده د هغـوي پـه خـلاف تبلیـغ او جدوجهـد کـړی دی. پـه هغـو ټولـو کـې د پـیر روښـان بایـزید انصـاري دمسـلك مخالفانـه کوښښونـو تـه یـې زیـات شـهرت حاصـل شـویدی. پـه دې بـاب کـې اګـر چـې اخونـد درویـزه علـیه الـرحمه بـالکل پـه حقـه و او ده ټـول تبلیـغ د اسـلام د مدافعیـت لـه پـاره وُ، لیکـن ځیـنی نـور داسـې عوامـل او خبرې مینـځ تـه راغلـې دي، چـې د هغـې پـه وجـه نـن ورځ بعضـې خلـك د اخونـد درویـزه او د هغـه د پـیر طریقـت (پـیربابا) علـیه الـرحمه دغـه دینـی خدمتونو تـه خـالص پـه دینـی نقطـه نظـر سـره نـه ګـوري بلکـې پـه دې وجـه، چـې بایـزید انصـاري پښـتون و او پـه مقـابل کـې اخونـد درویـزه او پـیر بابـا(رح) دواړه پښـتانه نـه وو. او بـل خـوا تـه بایـزید انصـاري د هغـه زمـانې د مغولـو پـه مقـابل کـې د پښتـنو دخـود مخـتاره حکومـت د جوړولـو پـه مهـم کـې کامـیاب شـوي او هـم پـه دې خـیال نـن ورځ بعضـی خلـك داخونـد درویـزه علـیه الـرحمه پـه هکلـه نامناسـب الفـاظ هـم استعمالوی. لیکـن دا خلـك دا حقیقـت پـه نظـر کـې نـه سـاتی، چـې د یـو حقیقـت پرسـت او ربـانی عـالم پـه مخکـې دا سـوال نـه وی، چـې دا یـو سـړي چـې د شـریعت اسـلام د اصـولو خـلاف ورزي کـوی. دی پـه قـام څـوك دی؟ بلکـه دهغـه پـه ناکـاره عمـل تنقیدکوی او هغـه چـې د بدعـت اوګمـراهی کـوم کاروتـه کـوی. د هغـې مخالفـت کـوی. ) سـر محقـق روهـی لـیکی چـې: (د عبدالحلـیم اثـر خـبره پـه هغـه وخـت کـې دمـنلو وړ وه. چـې دده

ممدوحانو د پښتنو او ګورګانیانو ترمینځ شخړو کې هیڅ لاس نه درلوداي او د یوې یا بلې خوا. ملاتړ یې نه کاوی.)

د ((تاریخ ریاست سوات)) موءلف محمد آصف خان هم د اخوند درویزه او پیر بابا له ارادتمندانو څخه دی. چې د نوموړي موءلف بیان لنډیز داسې دی:

دی وایي چې سیدعلی شاه صاحب ترمذي په اصل کې د ترکستان و، پلار یې د همایون پاچا په پوځ کې صاحب منصب و. کوم وخت چې شیرشاه همایون ته، ماتې ورکړه او همایون دربه در ګرځیده، نود سیدعلی پلار هم ورسره ملګری و. ده د اشرفیو ډکه همیانۍ خپله زوي (سیدعلیشاه) ته ورکړه او پخپله دهمایون سره ولاړ. د شیرشاه سپاهیانو دغه همیانۍ له سیدعلی څخه واخیسته. بیاکوم وخت، چې د همایون زوی (اکبر) پاچهی ته ورسید سیدعلی د پیر روښان سره مقابله شروع کړه.

البته محمدآصف خان به دغه معلومات د اخونددرویزه له (تذکره الابرار و الاشرار) څخه اخیستي وي.

په (تذکره الابرار و الاشرار)کې په وضاحت سره لیکل شوي دي څرنګه چې پیربابا. د شیرشاه له لښکریانو سره په پښتو خبرې ونکړې، نو هغوي فکر وکړ چې دی به د ګورګانیانو نماینده وی او د څه هدف د پاره به د پښتنو سیمې ته راغلی وي، نو ځکه یې له ده نه: هماغه دوې همیانۍ چې پلار ورکړې وې او یوه یې د سرو او بله د سپینو زرو وه واخیستې.

د اخوند درویزه د تذکره الابرار دوهمه برخه دافغانانو په باب ده او په هغه کې د پښتنو اکثررو پیرانو ته بد ویل شویدي او دپښتنو په باب یې هر ډول بې مسئولیته الفاظ کتار کړیدي.

درويزه په دې سخت تاسف کوي، چې د پښتنو غرني سيمې، ولې د هغه وخت د پاچاهانو تابع نه دي او بالمقابل دملنګانو او پيرانو ترنفوذ لاندې راغلې دي.

دا ټول داخوند درويزه د غوښتنو او هدفونو نمايندګي کوي خو د پورتنيو خبرو په خلاف په (ذخيره الخوانين) نومې کتاب کې، چې د جهانګير پاچا د دورې نوابان معرفي شويدي، روښاني نهضت ته د احترام په نظر کتل شويدي. د کتاب مولف شيخ فريد بهګري د دوهم باب په سرکې وايي (در تبيين احوال امرايې عاليشان که در زمان بهجت و سرور حضرت جنت مکاني جانګير بادشاه عليه الرحمه و الغفران بسروری و سرداری رسيده اند.

او له دې څخه ښکاري، چې شيخ فريد بهګري، جهانګير ته خاصه عقيده او ارادت درلود خو په عين زمان کې، دی د روښانياتو په باب داسې ليکي: (درزمان سابق شخص هندوستانی باسم بايزيد در ميان طايفه ای از افغانان روه درامده. کشف و کرامات خود را ظاهر ساخت. اکثر افاغنهء انجا را مريد خودنمود. عالمې په او ګرويدند و مشتهر به پير روشنايی ګشت و کتاب خير البيان نام بزبان پښتو تصنيف کرده و آنرا درآن مردم رواج داد و آن کتاب مدلل بر اثبات و جدت وجود است و دلايل و حجت ساطع و برهان قاطع از روی نص و احاديث و اقاويل بزرګان سلف اورده. الحق کتابيست نادر. هر کس بنظر انصاف تامل کند. فيض ازو حاصل مينمايد و آن عزيز دلها بهرکس که نظر کرد اورا مطيع خود ساخت و بمبداء رسانيد.) په همدې کتاب کې د روښانيانو د دښمنانو په باب داسې ويل شويدي. (ګروه ديګر بسبب

اختلاف مذهب و ناتوان بینی. حسد برده. عداوت تام به ایشان مینمودند.) د ادبي څیړنې مؤلف روهی په دې هکله وروسته له استنتاج نه داسې استفسار کوي: ((داڅرګنده خبره ده چې د بایزید روښان په زمانه کې ډیرې زیاتې مذهبي فرقې موجودې وې او حتی پخپله اکبر بادشاه هم د (دین الهی) په نامه یو نوی دین راایستلی و، نو چیرته د اخوند درویزه چې د اکبر په مقابل کې دمذهبي جهاد جنډه پورته کړې. برعکس ده د اکبر پر مخالف او سیاسي رقیب باندې دکفر فتوې ولګوله.))

اخوند درویزه په دې ښه پوهیدو، چې روښان دهندوستان د باچهی خیال په سرکې لری لکه چې وای: (دی هاله له ځانه خوښ شو، چې مهدي شو. دمهدي چارې به کړمه لښکري به کړم بنیادې هندوستان به ونیسمه آوازې یې کړلې کړې. هر چې اس لری راځی اس په ما پورې باسی د اکبر بادشاه تښګې واړه زما دي...)

اخوند درویزه دپښتنو اتڼ ته ګمراهي وایي. خود کورګانیانو د دربارونو په نڅا وو سترګې پټوي. همدارنګه دی د روښان پیروانو ته له دې امله بد وایي، چې هغوی به سندرې ویلی. خو د اکبر دربار، چې له سندرغاړو څخه ډک و هغه ته څه نه وایي.

اخوند درویزه په یوه ځای کې داکبر انحراف ته هم اشاره کوي. خو د روښانیانو پر ضد یې شپه او ورځ په ژبه او قلم مجادله کړې ده. په کومه قرینه کې، چې دجلال الدین اکبر ګورګانی پاچا ذکر راغلی‌دی او د هغه انحراف ته اشاره شوې ده دهغې څخه جوتیږي، چې اخوند درویزه پر روښانی جلال الدین (د بایزید روښان زوی) باندې داکبر زړه سوی دده دانحراف یو بل دلیل بولی. عبارت داسې دی: (القصه بعد از

مدتی یکی از خلفاي این کافر. روی نیاز براستان اکبر بادشاه نهاده عرض احوال نموده که غربای چندی در بند مردم یوسفزي بلاجهته شرعی افتاده اند امید که از کرم عمیم خداوندي خلاص گردند. چون اکبر بادشاه نیز از دین پاك خیرالبشر علیه السلام انحراف نموده بود انصاف نکرد و ندانست که این مردم یوسفزي محض از براي خدا توجه نموده اند.. جلال الدین وغیره از ذي رحم محرمه اورا از بند خلاص کرد و بخدمت خاص خویش برگزید.

سرمحقق روهي پخپل ادبي څیړنه کې لیکي چې: «دمحترم عبدالحلیم اثر څخه باید اوس ورپوښتل شي چې اخونددرویزه بایدله یوه منحرف امپراتور سره تر هر څه دمخه مجادله کړي وای اوکه د یوې ورې سیمي له یوه (مبتدع) پیر سره، په دې دواړو کې دکوم یوه خطر زیات و؟

روښان دنورو پیرانو په شان وحده الوجودي و او په اسلام کې دده په شان نور صوفیان اوعارفان هم تیر شوی دي، خو اکبر بادشاه نوي دین را ایستلی و.»

پوهاند عبدالحی حبیبی په همدي مناسبت لیکی: «دا ښکاره کوي چې د پیر بابا او اخونددرویزه دواړو مقصد سیاسي او په پښتنو د (اکبر بادشاه) منن وه، حال دا چې دغه د اسلام باچا پخپله هم یوه بیله لار (دین الهي) را ایستلیو، چې محقق علماء یې مخالف وو.»

عبدالاکبرخان اکبر هم په دي موضوع رڼا اچولې ده او داسې لیکي: «د پیر روښان اود روښانیانو په خلاف مذهبی الزامونو او مخالفت کې لوي لاس د (گورگانی) پادشاهانو وو. هغوي بادشاهی د پښتنو ته. اخیستې وه او په دي وجهی د هغوی

سياسي دښمنان پښتانه او لوديان کمزوري او وهل شوي وو. د سرحد او د غرونو پښتانه يو لوي طاقت وُ، او آباد وو. په يوه مرکز راجمع کيدل. يعنی دکانی گرم نه تر سواد او باجوړه پوري د بايزيد د مريدانو پيداکيدل او بيا ليوني مريدان چې په هيڅ اړ نه وو، داد اکبر د پاره لويه خطره وه. ددې وجهې هغه دشاهنشاهيت د هغې غټ گرته کار واخيست، چې قوم کې يې ډله او پره پيداکړه ډله ډله يې کړه، بيا پري حکومت کوه. بغير ددې نه د بايزيد د مذهبي عقيدې تعليم او د هغه په تصانيفو کې داسې هيڅ خبره نشته چې، په هغې د کفر او د بيديني الزام پرې ولگولی شی.))

عبدالاکبرخان اکبر داهم وايې چې، تر څو پورې چې بايزيد د گورگانيانو د امپراتوري په مخالفت بيرغ نه و پورته کړي اخوند درويزه دده په هکله داسې ليکلی وو، چې هغه پابند د شريعت و طاعت او عبادت کې به مشغول و، ډير هوشيار، زيرك او داناسړي و، او په حکمت هم پوهيدو خو وروسته اخونددرويزه پر هغه فتوی ولگوله، چې بايزيدملحد دی. پير تاريك دی او خلك بی لاري کوي.) نو معلومه شوه چې عبدالاکبر اکبر دغه الزامونه بی اساسه گڼي حمزه شينواری د (ورکې خزانې) په سريزه کې خپل نظر داسې څرگندوی: ((پير روښان دحنفي مذهب مقلد و، او مسائل يې زياتره دحنفي فقهې سره تعلق لری.))

اخوند درويزه پخپله په (تذکره الابرار والاشرار) کې ليکلي چې: (پير تاريك قايم الليل او صايم الدهر دی. ليکن دننه په زړه کې کافر دی.) اوس دافيصله خو په انصاف پسند د لوستونکي کوی، چې کوم انسان ټول عمر روژه او ټوله شپه په

لمانځه ولاړوی هغه کافر کیدی څنګه شی او تر ټولو مهمه خبره داده چې د بایزید روښان دزړه نه بی له الله بل څوك خبر و؟ زمونږ کارخو د هغه وخت د پښتو ادب د معیار اندازه کول دي، البته یو د وحده الوجودمساله داسې شته چې هغه د دغو دواړو تر مینځه داختلاف سبب کیدای شي، خو دا مساله باید چې د چا د تکفیر سبب ونه ګرځولی شي. ځکه چې ډیر اوچت او سپیڅلي مسلمانان ددې مسالې معتقد وو، داسې ښکاري چې پیرروښان داکبر دکفراو زندیقی په وجه توره ویستلی وه.

د پورتني څیړنې څخه جوته شوه چې د (ورکې خزانې) لیکونکی او راغونډونکی همیش خلیل د بایزید انصاری تر عنوان لاندې لیکي چې هغه یو روحاني پیشوا او د یوه ملی تحریك باني و، خو له یوه قوي طاقت سره دمقابلې په وجه مورخینو له نظره غورځولی دی او یا یې په غلط رنګ کې معرفی کړی دی.

دهمیش خلیل ددې خبرې په تائید کې ډیر مثالونه راوړی شو، خو د نمونې په توګه که (طبقات اکبري وکتل شی). جوتیږي چې داکبر له خوا د جلال الدین روښاني (مشهور په جلاله) په خوشی کیدو باندې دکتاب مؤلف هماغومره خواشیني ښودلې ده لکه اخوند درویزه چې په (تذکره الابرار والاشرار) کې څرګنده کړې ده. (طبقات اکبري) په هر ځای کې همایون دحضرت جنت آشیانی، جلال الدین اکبر دحضرت خلیفهء الهی په القابو یادوی. خو شیرشاه او سلیم شاه د شیرخان او سلیم خان په نومونو یادوی اوزړه یې نه غواړي، چې له هغو سره د (شاه) کلمه استعمال کړي. دجلاله دخوشی کیدو په باب طبقات اکبري او(تذکره الابرار و الاشرار) په دې ډول

عباراتونو لیکي. ((طبقات اکبري) لیکي: (پسر او جلاله نام که در سن چهارده سالگی بوددرسنه تسع و ثمانین تسعماته که رایات عالی ازکابل محاورت نموده بود بملازمت حضرت خلیفهء الهی امد مورد مراحم شاهنشاهی شد و از شقاوت جبلی روزي چند در ملازمت بود، فرار نموده در میان افغانستان رفته مایهء فتنه و فساد شد و خلق کثیر را باخود متفق ساخته راه هندوستان و کابل مسدود ساخت

*(درختی که تلخست ویرا سرشت*
*گرش در نشانی به باغ بهشت*
*و راز جوی خلدش بهنگام آب*
*به بنج انگبین ریزي و شهد و ناب*
*سر انجام گوهر بکار آورد*
*همان میوهء تلخ بار آورد*

حضرت خلیفهءالهی جهت دفع و رفع طایفه اي روشنایی که درحقیقت عین تاریکیست ومن بعد بران قلم خواهد یافت کشورمانسنگه را تعیین فرمود...)

اخوند درویزه په دې باره کې داسې لیکي: ((... جلال الدین و غیره از ذي رحم محرمه اورا از بند خلاص کرد و بخدمت خاص خویش برگزید. مگر پادشاه حکایت گلستان شیخ سعدي در نیافته بود که حضرت شیخ بران مضمون فرموده اند:

*زمین شور سنبل برنیارد*
*درو تخم عمل ضایع مگردان*
*نکویی با بدان کردن چنان است*
*که بد کردن بجاي نیکمردان*

آخرالامر جلال الدين لعين از اکبر پادشاه گريخته در کروه تيراه به افغانان متمردان آن کوه که از توابع پدر او بوده پيوسته ...))

ددغو دوارو ليکنو له مقايسې څخه څرگنديږي چې د روښانيانو په باب د درويزه موضع گيري د گورگاني دربارد مؤرخينو له موقف سره کوم توپير نه لري.

په عمومي ډول ويلی شو چې په پخوانيو آثارو کې روښاني نهضت ته د روښاني فرقې نوم ورکړ شويدی.

په داسې حال کې چې اکثر اوسني ليکوال هغه يو سياسي جنبش گڼي، روهي ليکي، چې په اوسنيو څيړونوکې ددې نظريې د اثبات د پاره چې، اخوند درويزه د گورگانيانو په لسمون د روښانيانو مخالفت کاوه د سندونو د وړاندې کولو کوښښ نه دی شوی بالکل يو مسلم اوبديهي حقيقت گڼل شوی دی. په دې برخه کې چې کوم دلايل وړاندې شوي دي د اغلب احتمال بڼه لري او وړاندې شوي تيس په قطعي او يقيني توگه نشي ثابتولی. دا د يوه رښتيني محقق وظيفه ده چې د شك او ابهام د ليرې کولو د پاره ثقه اسناد وړاندې کړي او خپل تصور بديهي حقيقت ونه بولي.

د روښان د پلويانو د ډلې ليکوال روښان حق په جانب بولي دمثال په توگه په (دلبستان مذاهب) کې د بايزيدانصاري په باب داسې نظريې راغونډې شوې دي چې، د هغو له مخې روښانيان بايد يوه مستقله فرقه وگڼله شي. په نوموړي کتاب کې دده نوم په درناوی ياد شوي او حضرت ميان روشن يې بولي خو (ماثرالامراء) چې د صمصام الدوله شاهنواز خان اثردی او پروفيسر محمدايوب قادري په اردو ژبه ترجمه کړي

دی روښاني نهضت ګورګانیانو په مقابل کې بغاوت او فساد ګڼل شویدی.

د قاضي میر احمد شاه په (تحفه الاولیاء) کې داخوند درویزه نظر تکرار شویدي:

(کانت الدعوه الروشانیه دیینه محضه والکنها صبحت سیاسیه اکثر من کونها دینیه بعد وفاه بایزید الانصاري و خاصته فی عهدجلال الدین بن بایزید الانصاري) سره له دې دمقدمې د لیکونکي دکتور میرولی خان مسعودي په نظر د اخوند درویزه مخالفت له روښان سره د تعصب نه ډك و، او پر هغه یې ځینې بې ځایه تورونه لګولي دي.

د (یوسف زیی پتهان) کتاب کې چې په اردو لیکل شو دی روښاني نهضت ته دازادۍ غوښتنې تحریك ویل شویدي. د کتاب مؤلف (الله بخش یوسفی) د محمد عبدالشکور په حواله وایې، چې، بایزید انصاري یو صحیح مبلغ، لاربنود، سیاست دان او ادیب و، خو اخوند درویزه د مذاهبی تعصب، ذاتی عناداو سیاسي اختلافاتو په وجه، ده ته ملحد او زندیقی وویل. مؤلف، داخونددرویزه په باب لیکي، چې، اخونددرویزه پښتو ژبې ته د پیر روښان دمخالفت په برکت ډیر خدمت کړی دی.

میرغلام محمدغبار پخپل مشهور کتاب (افغانستان درمسیر تاریخ) کې د روښانیانو په باب لیکي: (این مبارزات طبقات داخلی بامبارزهء ازادیخواهانهء ملی بر ضد سیطره و تسلط دولت خارجی هندوستان در کابل و پشاور یکجا شد و از قرن شانزده تا قرن هفدهم طول کشید اما بالاخره دولت بابري هندوستان با پول و سیاست در سایهء اتحاد با روحانیون و خان هاي داخلی این نهضت را سرکوب نمود و از همه بیشتر

ملا درویزه ننگرهاري (موءلف تذکره الابرار والاشرار) در این سرکوبی هموطنان حصهء بزرگ تبلیغاتی داشت و بواسطهء زبان و قلم در زیر نقاب مذهب از پانه نشست و خستگی احساس نکرد. تااین نهضت خاموش نه شد او بایزید را در زیر ضربات تکفیر و توهین و تحقیر قرار داد.))

پوهاند عبدالحی حبیبی (د پښتو ادبیاتو تاریخ) دوهم ټوك کې د روښانیانو نهضت په مفصله توگه څیړلی دی.

دده په عقیده روښانیانو د بابري دولت داستبداد په مخالفت کې (چې بابري دولت پر پښتنو باندې کول) قیام وکړ او دازادي غوښتنې بیرغ یې پورته کړ، خو بابري دولت ددغه نهضت د مخنیوي د پاره کوښښ وکړ، چې پښتانه پخپل مینځ کې سره ولویږي. نو سید علي ترمذي او اخوند درویزه. چې، له قدیمه یې د گورگانیانو سره خپلوي درلوده ددې کار دپاره وگمارل شول.[۱]

د روښاني نهضت د ماهیت په باره کې د شوروي اتحاد پوهاتو هم څیړنې کړې دي. پروفیسر اسلانوف لیکي چې: (د افغانانو په تاریخ کې شپاړسمه پیړي خاص اهمیت لري. د مرکزي اسیا یرغلگرو، د بابر په مشري اول کابلستان او افغاني خاوره ونیوه، ورپسې یې شمالي هند تسخیرکړ او په دې ترتیب یې د شپاړسمې پیړۍ په لومړۍ نیمایی کې د سترمغول امپراتوري تاسیس کړه. دغو فتوحاتو په افغاني ټولنه کې چې په دیارلسمه او څوارلسمه پیړۍ کې یې دلومړني کموني نظام تجزیه پیل شوي وه، طبقاتي تضادونه تشدید کړل

(۱) پوهاند عبدالحی‌حبیبی، د پښتو ادب تاریخ، دوهم ټوك، کابل، دولتي مطبعه، ۱۳۶ ص، ۱۳۴۲ کال

او همدارنګه یې د فیوډالي کولو جریان چې په مختلفو افغاني قبیلو کې یې بیلا بیل شکلونه درلودل کړندی کړل.))

اسلانوف زیاتوي چې په شپاړسمه او اولسمه پېړۍ کې افغانانو له یوې خوا د بابري دولت سره ډغري وهلې دي او له بلې خوا یې د فیوډالي ملاکانو پر ضد مبارزه کړې ده.

ددغه پاڅون په سر کې د روښانیانو فرقه ولاړه ده. دده په نظر، روښاني نهضت په اصل کې بزګري قیام و چې، د فرقه یې مسلك په لباس کې یې تبارز وکړ.

اسلانوف دخپل نظر د اثبات د پاره پر (تاریخ مرصع) باندې حواله ورکوي. چیرته چې د ملك نور اورکزي له خوا روښاني احداد ته ویل شوي دي. (زه حاضر یم چې، ستاهر امر ومنم خو یو دکور او پتې واك نه درکوم.

پروفیسر اسلانوف په صراحت سره وایي‌چې: ((د روښاني فرقې پر ضد د متعصبو روحانیونو مشرتوب اخوند درویزه کاوه.چې هغه د فیوډالي ملاکانو او مغل اعظم طرفداري کوله.))

د پروفیسر نیکولاي دوریانکوف په عقیده (دا نهضت د ګورګاني امپراتورۍ دتسلط پر ضد دخپلو فیوډالاو پرخلاف د لوې منطقې د اولسونو د آزادۍ مبارزې یوه مهمه برخه وه.)

څرنګه چې دده په نظر (د بایزید روښان نهضت نه یوازې دیني جریان و، او دا مجادله نه فقط په اسلام کې دننه د یوې مذهبي ډلې مبارزه وه، بلکې دې مبارزې بې شکه خپل سیاسي. اقتصادي. اجتماعي اوطبقاتي مفهومونه درلودل.)

تو ویلی شو چې، د روښانیانو دمخالفانو مجادله به هم په اصل کې سیاسي وه. سره له دې پروفیسر دوریانکوف پخپله مقاله کې داخوند درویزه نوم نه دی اخیستی.

اوس به ددې موضوع د پوره روښانتیا په خاطر د روښان یاد دځینو لیکوالو دمقالو لنډیز راواخلو محترمې معصومه عصمتی د بایزید روښان د وخت د سیاسي اقتصادي او اجتماعي عواملو د څیړلو په ترخ کې لیکلی چې: ګورګاني دولت د یو مسلط اقلیت دګټو د ساتنې د پاره د حاکمې طبقې درې ډولې قشرونه (ملاکان او لوي زمینداران (۲) غټ مامورین او بیروکراتان او ځینې روحانیون له ځان سره ملګرې کړي وو. چې په دې وروستي ډله کې د سیدعلی ترمذي او اخوند درویزه نوموته مخصوصاً دیادونې وړدي. ددې په نظر، دوی دواړه دحاکم قدرت اجیران وو. معصومه عصمتی له روښانیانو سره د سیدعلی ترمذي او اخوند درویزه د مخالفت څرنګوالی په یوه خوندوره طریقه بیانوي: (هغوي بایزید روښان، بایزید تاریك او روښانیان به یې تاریکیان بلل او تکفیرول یې. په هر ځای کې یې کوښښ کاوه چې عامه خلك ډله ډله کې او د پیر روښان قدرت شنډ کې... په مختلفو جنګونو کې، چې د پیر روښان د پیروانو او ګورګاني حکومت تر منځ پیښیدل. دوي روښانیانو ته د کافرانو خطاب کاوه او مقابل لوري به غازي او شهید وو، لکه چې د بیر بل مرګ ته اشاره کوی او وایی چې غازیان ډیر مړه شول. خو د کافرانو مالونه هم لوټ شول. ګویا دوی بیربل ته دغازي او شهید لقب ورکړ او یوسفزو ته د کافرانو خطاب.))

پخپله معصومه عصمتی په دې عقیده ده. چې د مذهبی تعلیم او عقیدې له نظره د بایزید په تصانیفو کې داسې کومه خبره نشته چې، پر هغه د کفراو بې دینۍ الزام ولګول شي

پروفیسر سیال کاکړ لیکي چې: ((بایزید پښتني ذهنیت درلود نو ځکه خویې له پردي استعمار سره را اخیستی وه...)) که له یوې خوا اکبري استعماریت پښتانه ترخوارۍ سا راوستلي وو، نو د بلې خوا ګورګانیانود خپلوسیاسي جالبازیو په وسیله په پښتنې چاپیریال کې کې داسې کسان روزلي وو، چې، هغه به تل دملي عناصرو پر ضد جنګیدل. مونږ دتاریخ په پاڼو کې یو له همداسې کسانو څخه د اخوند درویزه په نامه سره پیژنو.

سیال کاکړ هغه کسان (د درویزه وال) په نامه یادوي، چې، د خپلو شخصي ګټو دساتنې د پاره دمترقي اجتماعي نهضتونو پرضد دریږي.

محمد اسماعیل مبلغ روښان د یوه صوفیانه مکتب موسس بولي او داسې نظر ورکوي: ((موجزاتیکه بایزید انصاري در تاریخ تصوف افغانستان داراي مقام بسیار ارجمند است، ارجمندي او در این است که در راه تصوف از تقلید محض جداً اجتناب نموده ویا ابتکار فرقهٔ جدیدي بنام ((روشنیه)) وتجدید نظر در شماره و ترتیب مقامات عرفاني ګنجینه اي تصوف اسلامی را غنی تر ساخته است.))

څرنګه چې پخپله اخوند درویزه هم سالك او د پیر بابا مرید و او د محمداسماعیل مبلغ په قول (فرقه های صوفیه درمسائل عقاید بایکدیګر اختلاف ندارند.) نو ویلی شو چې، له روښان سره د اخوند درویزه مخالفت یوازې مذهبي اړخ نه لري.

د اروابناد خادم په نظر د روښان مبارزه سیاسي وه او دده رقیب اخوند درویزه ټول کتابونه فقط د همدې منظور د پاره لیکي دي، چې عوام دده له لارې نه واړوي او خلك دده پر ضد

ولمسوي. او همداخبره څېړندوی عبدالله خدمتگار په صراحت سره څرگنده کړې ده، لکه چې وايي: ((د درويزه آثار چې سړې ولولي نو دا پته ورته لگيږي چې رښتيا ده خپل آثار د روښان او روښانيانو په ضد د يو منفي پروپاگند په شکل د لوستونکو د غولولو او د روښانيانو د خلکو د اړولو د پاره ليکلی دي. نه د شريعت دواقعي احکامو دواقعي تبليغ د پاره)).

ابراهيم عطايي د روښان په باب ليکلی دي: (د روښان د مترقي تعليماتو پر ضد تور قوتونه په حرکت راغلل او د گورگاني دربار ډېر طرفدار پيران په يوه محاذ کې ورته راټول شول او پرده يې د کفر او الحاد حکم وکړ. اخونددرويزه پر ده (پير تاريك) نوم کيښوداو پير ترمذي وويل. (لويه بلا ده.)

حبيب الله رفيع د روښانيانو په باب ليکي: (( د دوي ادبي قدرت دومره زيات و چې مخالفينو يې هم له لياقت او قدرت نه سترگې نشوې پټولاي اواخوند درويزه چې د دوي لوی مخالف دی اودگورگاني سلطنت په لمسه يې په دوي دکفر تاپې لگولې دي هم د دوی په علميت او ادبي قدرت معترف دی او پخپلو آثارو کې ځای په ځای د دوی د لياقت يادونه کوی.))

څېړنمل ژواك پخپله مقاله کې چې عنوان يې دی ((روښان دمليت د بنسټ اېښودونکی په حيث)) بايزيد له (ماذينی نيشلست) او (مارتين لوتر) د پروتسانت دمذهب له موسس سره پرتله کړی دی‌او وايي چې: ((بابريان د سيدعلی ترمذي (پيربابا) او دده شاگرد (اخوند درويزه) څخه دومره کار اخلی چې روښانی تحريك (تاريکی تحريك وبولي.)).

غوث شهامت د سيدعلی ترمذي په باره کې وايي چې: ((هغه د گورگانيانو خاطر خواه و اود بزگرو د حمايی او د

فیوډیالانو د بدنیت اوسپکاوي له کبله یې بایزید ته ډیر بد کتل نو ده او د هغه مرید اخوند درویزه د بایزید روښان پر ضد تبلیغات شروع کړل.))

د پروفیسر انورعلی یف په مقاله کې ځینې دوی ټکي لیدل کیږي چې په نورو مثالو کې نشته که په لنډ ډول ووایو د سیمینار په مقالوکې د روښان او درویزه ترمینځ د مخالفت دلایل سیاسي ښودل شویدی. که چیری د نظریو اکثریت د یوی ادعا د رښتنوالي ثبوت وی نودا موضوع باید حل شوی وګڼو. خو سره ددې باید ووایو، چې د علمی اسلوب له مخې د رایوډیرښت د حقیقت اصلي معیار نه ګڼل کیږي. د یوه تیسس د اثبات د پاره باید کافی اسناد، شواهد او منطقی دلایل وړاندې شی. دا چې محترم لوستونکي پورتني دلایل کافي ګڼي یا نه. د دوي په ذهنیت پوری اړه لري. د ځینې اصول غوښتنه کوی چې دیوې شیبې د پاره هغه دلایل هم واورو چې دپورتني ادعا په خلاف اقامه شوی دي. ددغو دلایلو لنډیز داسې دی:

۱- پخپله اخوند درویزه په دې خبره ټینګارکوی چې د بایزید سره دده مخالفت د مذهبي اصولو پر بنا شروع شویدی او بل غرض یې نشته. د پیر روښان د بیوګرافی د شرح کولو په پاي کې، دی داسې وایي: ((درویزه چې څه بیان کا واړه دین د پاك نبی بیانوینه، پښتانه په بله ژبه نه پوهیږي ځکه دی یې په پښتو وروښینه. واړه دین د پاك نبی بیانومه وپوهیږي مومنانو. ددي پاك نبی له دینه په دا خپله ژبه پوه شی، افغانانو. بل غرض پکی نشته مګر دا چې شفقت کړم پر عامیانو هر چې دا باور یې نه وي څه تهمت راباندې وایی هغه کس دې ودریږي له بی دنیو بی ایمانو)) مخزن.

۲- اخوند درويزه يوازې د بايزيد انصاري مخالف نه دی کړی، بلکې يوولس نوری مذهبي فرقې لکه حبيبيه. اوليائيه، شمراخيه. حاليه. حلوليه. واقفيه او داسې نورې يې هم سختې غندلې دي او د هغو پيروان يې کافران ګڼلي دي. په (تذکره الابرارو الاشرار) کې يو ځای ليکي: ((در ولايت يوسفزي دو ملحدان متردان؟ مخالفان شريعت محمد باشند شهرتی تام دارند که يکی پير طيب نامند که از افغانان غلجی است اصلاً دويم پيرولی ګويند که از افغانان بربچی است...))

همدارنګه په نوموړي کتاب کې اخوند درويزه د خپلې عصر ګورګانی امپراتور جلال الدين اکبر هم ګواه او له دين نه منحرف ګڼلی دی.

۳- اخوند درويزه له بايزيد انصاري سره د خپل مخالفت د پاره مستند دلايل لري، چې د بايزيد خيرالبيان د اثر څخه داسې فقرې يې تولې کړيدي، چې د اخونددرويزه په شان نور متشرع عالمان هم که مخالفت او پلمه غوښتل يې مطلب وی، نو له هغو څخه د خپل مخالفت د پاره دستاويز ګرځولای او ترې استفاده کولای شي.

۴- د ګورګانيانو څخه د ملاتړ په باره کې، اخوند درويزه کوم سند ، نه ورکوي. ده دګورګانی پاچهانو مدح نه ده کړې او حتی د دوی ظلمونه يې هم يادکړی دي، د مثال په توګه پر يوسفزو باندې دګورګانيانو د حملې په باب ليکي: ((يوسفزي ددي حملو په وجه د بونير د سيمې نه سوات ته روان شول.))

د سوات په سرحدي دره کې مې دومره مړې وليدل چې هيڅا يې د دفن طاقت نه لرلو چا چې مرداره مونده لکه دحلالې به يې خوړه. او چې نه به يې مونده مړه کيدل به. دومره ظلمونه

پر دوي وکړای شول، چې د هغې لیکل د ادب د طریقې نه لیري دي. خلاصه دا چې واړه د مور او پلار نه او ځوانان د ښځو نه جدا شول او قید کړی شول. بلکې اکثرو به د لوړې نه یو بل لوټل او خرڅول.))

کاکاخیل زیاتوي چې، ((اخوند درویزه بابا(رح) د مغلو د لاسه دغسې دردیدلی او دغسی در په در شوي و. څنګه چې نور یوسفزي دردیدلی او در په در شویدي.))

۵- اخوند درویزه لیکي چې، پیر بابا به خپل پلار ته ویل چې د ګورګانیانو نوکري مه کوه او خپل وخت په عبادت تیروه. لیکن پلار یې دا خبره ورسره نه منله. (تا زمانیکه همایون بادشاه از دست شیر شاه بادشاه افغان، شکست یافت معه ي بقیه لشکر روي به کابل نهاد دران موضع مارا با پدر مشفق ملاقاتی شد و در کنار یکدیگر را ګرفتیم ترحم و تلطف بیحد نموده اما اه تحسر و تاسف میکشید که من بر غلط رفته بودم جاي ابا و اجداد را شما ګرفتید در دین و دنیا کار همین است که تو ګرفتي، الحمدالله که بدین رتبه رسیدي.)

۶- خوشحال خټک چې د ګورګانیانو دښمن و په اول سر کې د روښان په مقابل کې د اخوند درویزه ملاتړ کوی او داسي وایی:

زه د درویزه غونډې ایمان ښیم و ده ته، دی د پیرروښان غونډې د کفر کا تلقین. که چیرې خوشحال پوهیدلای وای چې اخوند درویزه د ګورګانیانو د خوشحالولو له پاره د بایزید روښان سره مخالفت کړی دی، نوده به د روښان په مقابل کې د درویزه له موقف څخه دفاع نه وه کړې. د افضل خان خټک په (تاریخ مرصع) کې هم د اخوند درویزه نظر په تایید شوې ده.

۷- کوم آثار چې د روښانيانو په عصر کې ليکل شوي دي. اکثر يې له دوی سره د مذهبی معتقداتو پر بنا مخالفت کوی. (ذخيره الخوانين) چې روښانيانو ته په ښه نظر ګوري. علت يې دادی، چې نواب رشيدخان روښانی د جهانګير په ملازمت کې داخل شوي دی او د کتاب مؤلف ددې د پاره چې نواب رشيدخان خپه نشی نو د روښانيانو په برخه کې يې منفی نظر نه دی ورکړی، په يوه ځاي کې وايي: ((مردم ساده لوح روه برو فور ظهور کرامات و کشف قلوب او اکثر ګرويدند.)) او له دې څخه ښکاري، چې د کتاب مؤلف (شيخ فريد بهکري)) دروه خلك، ساده ګان بولی، چې روښان د غرو ساده او له دين نه بې خبره خلك به پسې روان کړي وو.

۸- که اخوند درويزه د ګورګانيانو په لمسون په روښان پسی رااخستې وي نو ايا کوم داسې روايت شته. چې ده ته دې ددغه غټ خدمت په مقابل کې کومه صله يا پاداش ورکړی شوي دی؟

۹- ايا دا روښان نه و چې سيدعلی ترمذي او اخوند يې خپلې مريدی ته راوبلل او ايا لومړي حرکت د بايزيد له خوا نه دی شوي. په حالنامه کې هغه کسان چې د روښان مريدان نه وو، د منافقانو په نوم ياد شوي دي او کله کله مشرکان بلل شويدي. په حالنامه کې راغلی دي: ((وکلانتران هفت تپه جمع شد و يکجا بنشستند براي مصلحت بيرون کردن (از) خانه پير دستګير قدس سره. ګفتند که بايزيد اول صالح و نيکوکار و برده بار. و نويسنده و پرهيزګار و خاطر جو بود و چون دعوی توحيد اغاز نمود اول ګفت که خلق را در شرك و پليدي می بينم. چون چند مرتبه به هم رسيدند ګفتند که خلق همه کافراند و من مهدي ام و بر من جبرئيل می ايد والحال ان دعوي

گذاشته است اما مریدان و یاران خود را به بدي و فساد گماشت...)) دا خودکاني گرم خلك وو. چې د بایزید انصاري په باره کې یې دغسې خبري کولې او دی یې له خپل کلی څخه وشاړه. پخپله قاضی عبدالله د بایزید پلار هم پخپل زوي پسې توره را ایستلې وه او هغه یې زخمي کړ او د بایزید ورور یعقوب هم دده په خلاف دریدلی و. دا به درسته نه وي چې د روښان ټول مخالفان به د گورگانیانو پلویان وو. په پښتنو کې داسې قومونه ډیر وو چې هم له روښانیانو او هم له گورگانیانو سره جنگیدل یعنې دا حتمي نه ده چې د بایزید روښان دښمنان دی دگورگانیانو دوستان وي.

پورتني لیکل شوي دلایل د اخوند درویزه د تیرئه کولو د پاره ویل کیږي. په دي کې شك نشته چې اخوند درویزه له روښان سره د خپل مخالفت د پاره مذهبي دستاویز درلود او د هغو کسانو قضاوت به سم نه وي، چې وایي دغه جگړه فقط سیاسي وه او مذهبي جنبه یې قطعاً نه درلوده اما په دي برخه کې چې مذهب د اخوند درویزه د پاره وسیله وه که غایه څه ویل مشکل غوندي بریښي.

له روښانیانو سره د اخون پنجو د مخالفت شرح به په دي موضوع یو څه نوره رڼا هم وغورځوي او خبره به روښانه شي.

د اخوند درویزه په معاصرینو کې ډیر مشهور سړي (اخون پنجو) دی. دده اصلي نوم عبدالوهاب و. خو خلکو کې د (اخون پنجو) په نامه مشهور شوي و. ځینې وایي چې سرمست روښاني، د ملنډو په ډول پر ده باندې د (پنجو) نوم ایښی و. سرمست روښاني به ویل چې عبدالوهاب د توحید او عرفان له مسائلو څخه نه دی خبر او له پنج بنا نه زیات په بل څه نه

پوهيږي نو ځکه يې هغه (اخون پنجو) وباله. په (تحفه الاولياء) کې راغلي دي. (سرمست تاريکي که پير اين مردم بود چون ازين معامله خبر يافت مخالفت انحضرت پيدا کرد و بسبب حقارت، ايشان را پنجو ميگفت يعنی انکس که تعليم پنج بناء اسلام ميکند و ديگر چيزي نميداند.

اخوندصاحب چون بشنيد فرمود: ((ازين چه بهتر خواهد بودکه لقب من معلم پنج بناي اسلام باشد و دعا کرد که حقتعالی اين لقب را برمن تاقيامت قايم بدارد.

چون در افغانان معلم قران و مباديات مسائل دينی را اخون ميگويند که در اصل از لفظ اخوند مرخم شده بعد از ان به اخون پنجو صاحب مشهور شدند.))

د اخون پنجو صاحب شهرت له دي ځخه هم معلوميږي. چې دده د ژوند د حالاتو په باب په نظم او نثر مستقل کتابونه چاپ شوي دي، مثلاً شيخ عبدالرحيم دده مناقب په دري ژبه وکښل. بيا د خاکي په نامه يو شاعر دغه کتاب په دري منظوم کړ. وريسی ميا پادشاه دده مناقب په پښتو نظم وليکل. سربيره پردي شيخ عبدالغفور عباس پيښوري، قاضي ميراحمد شاه رضواني او نصرالله خان نصر، دده د ژوند د حالاتو په باب جلا کتابونه او رسالي ليکلي دي.

پخپله اخوند درويزه هم په تذکره الابرارو الاشرار کې دی د عبدالوهاب مانکراوي په نامه داسې ليکي: ((دانشمند مدقق و فقيه محقق است... و چون اين مرد متجر در انواع علوم است. هم در تاليفات نثري دستی رفيع دارد و هم در تصنيفات شعري پايگاه منيع بعضی از تاليفات او بزبان عربی افتاده و بعضی بزبان هندي و اکثر الدقايق را نيز نظم اورده...))

پوهاند حبیبي وایي، چې دغه وروستی کتاب یې په پښتو نظم کړي دی (وګوري تاریخ افغانستان در عصر ګورګانی هند ص ۷۲۰). [۱]

د قاضي عبدالحلیم اثر له څیړنو څخه جوتیږي چې د تذکره الابرار و الاشرار د لیکلو په وخت کې عبدالوهاب د (مانك راي) په کلي کې اوسیده نو ځکه اخوند درویزه هغه ملا عبدالوهاب مانکراوي بللی دی.

عبدالحلیم اثر د (ائینهء تصوف) په استناد لیکي چې:
((مولانا عبدالوهاب په یوولسم تاریخ د ذي القعده ورځ دوشنبه ۹۹۷ هـ.ق په مقام د قلعه تمن (پېښور ښهر) له اخوند درویزه ننګرهاري نه په طریقهء عالیه سهروردیه کې بیعت کړي و...))

اخون پنجو هم د اخوند درویزه په شان د روښانیانو سرسخت مخالف و دوي دواړه دوستان او دیوې طریقې ملګري وو.

که د (ائینهء تصوف) خبره رښتیا وي نو اخون پنجو د اخونددرویزه په واسطه د چشتیه طریقې ته داخل شوی او د هغه پیرو دی. په داسې حال کې چې د اخوند درویزه مناسبات له ګورګانیانو سره پوره څرګند نه دي اخون پنجو له ګورګاني پاچهانو سره کلکه رابطه درلوده.

قاضي میراحمد شاه په (تحفه الاولیاء) کې لیکي چې:
((جلال الدین اکبر بادشاه د بزرګانو اولیاوو ډیر درناوي کاوه او له تولو نه زیات یې پر چشتیه حضرتانو اعتقاد درلود ځکه هغه وخت چې دده اولاد نه کیده نو خداي پاك د سلیم چشتي په دعا هغه ته زوي ورکړ. چې پر هغه باندې یې د سلیم نوم کیښود او وروسته په جهانګیر مشهور شو.))

(۱) تاریخ افغانستان در عصر ګورګانی: ص، ۷۲، دولتی مطبعه، کابل ، ۱۳۴۳

جلال الدين اکبر لا ډير مخ کې اراده کړې وه چې د اخون پنجو ملاقات ته ورشي. خو له يوې خوا عبدالله خان ازبک د کابل د نيولو خيال درلود، له بلې خوا يوسفزيو، سر راپورته کړي وو او په خيبر او تيرا کې روښانيانو د جلاله بن بايزيد روښان په مشري د تګ او راتګ لارې بندې کړې وې. نو اکبر د اخون پنجو ليدلو ته نشو ورتلای. کوم وخت چې جلال الدين اکبر د يوسفزيو د ټکولو د پاره د (نوښهره) حصار جوړ کړ، نو اکبر د ښکار په نيت راووت: ((در اين ايام حضرت اخون پنجو صاحب رحمته الله عليه که بيرون (اکبر پوره) در مسجد کهجور به ياد الهی مشغول ميماندند و در لباس تجريد و بی تعلقی ميزيستند و خاص و عام به ايشان رجوع کردند تا انکه جلال الدين اکبر شاه نيز شکارکنان به (اکبر پوره) امد و بخدمت ايشان رسيده فيضياب گرديده استمداد همت نمود. ايشانْ در حق شاه توجه کردند تا به برکات اين بزرگوار حقتعالی جل شانه، اکبر را جاه و جلال بخشيد و دشمنان اورا شکست داده ذليل گردانيد. يوسفزيی ايل شدندو فرقهٔ روشنايی پراگنده و متفرق گشت و عبدالله خان ازبک هوای کابل از سر بدر کرد)).

قاضی رضوانی زياتوي څرنګه چې اکبر پادشاه له يوسفزيو څخه کرکه درلوده نو حضرت اخون پنجو د پاچا د خوشحالولو د پاره له هغه ځايه کډه وکړه او د (روهيلکنډ) (سهنبل) نومې ځای ته ولاړ او په همدې اساس کله کله اخون پنجو له نوم سره د (سهنبلی) کلمه ليدله کيږي. عبدالحليم پخپل اثر کې ليکي چې، اخون پنجو د ګورګانی واکمنانو سره د دې د پاره دوستانه تعلقات ساتل چې د پادشاهانو او اميرانو په مرسته روښانيان

او نور د باطلو عقیدو خاوندان ورك او نابود کړي. اخون پنجو به د ګورګانیانو مخالفان باغیان بلل، او هغوی به یې تشویقول چې د اسلام پاچهانو ته غاړه کښیږدي.

کوم وخت چې اخون پنجو (اکبر پوري) ته راغی دلته خلك په سرمست روښاني باندې راغونډ شوي وو. قاضي رضواني د (خاکي) شاعر له خولې وایي چې داودزیو پښتنو به په حجرو کې سازونه وهل او نڅاوي به یې کولې. دوي ټول ګمراه شوي وو او د (پیرتاریك) لاریي غوره کړې وه. په دي ټول کلي کې څلویښت حجرې وې چې په هغو کې به ربابونه وهل کیدل خو یو مسجد هم په کې نه و. دا خلك اباحتي وو، چې سرود او سندري یې مباح ګڼلې.

ددوی پیر سرمست نومیده چې د جلاله له پیروانو څخه و اخون پنجو خلکو ته خپل کرامات ورښکاره کړل او سرمست ته یې ماته ورکړه.

دده له کراماتو څخه یو داو، چې ده خپل مرید ته امسا ورکړه چې په اوبو کې یې ودروي. دغه امسا چې په اوبوکې کینبودل شوه. اوبه په ځای ودریدې بند وتړل شو او د سیلاب مخه بنده شوه. وایي د اخون پنجو په اواز کې دومره تاثیر پروت و، چې کله به ده (الاالله) وویل نو حاضرین به بې هوشه شول او چې (الاالله) به یې پسې وویل بیرته به په هوش راغلل. حضرت اخون پنجو صاحب یوه ورځ د جومات په حجره کې د مراقبې په توګه سر په زنګانه ایښی و. کله چې راپاڅید . کالي یې لانده شوي وو او د سمندر تروي اوبه یې له کالیو څخه څڅیدې. دده مرید حیران و. خو اخون پنجو په خندا ورته وویل چې زه د مراقبې په حال کې وم ومې لیدل چې زما د یوه

مخلص بیړی چې حجاز ته روانه وه په اوبوکې ډوبیږي. سوداګر له مانه د روحانیت په عالم کې مرسته وغوښته زه ورغلم بیړې مې وژغوله. نو زما کالی هلته لانده شوي دي. په دې ترتیب اخون پنجو د کراماتو په ښودلو سره خلك د ځان مریدان کړل.

د سید علی ترمذي، اخوند درویزه او اخون پنجو له ویناو څخه دا ټکی څرګندیږي چې دوی د ازادو سیمو پښتنو ته د باغیانو په سترګه کتل او په دې یې ډیره خواشینی ښودله چې د غرو خلك د امیرانو او حاکمانو تر نفوذ لاندې نه دي او هر وخت (بغاوت) او (فساد) ته ملا تړي.

درویزه په مخزن الاسلام کې د پیر روښان په باب وایي چې هغه هري خواته پیغامونه ولیږل نو زه او پیر دستګیر سیدعلی ترمذي په بایزید پسې ورغلو: ((پس این فقیر هم همراه برفتم و اورا چنان در دعوي خجل و شرمسار ساختم که سخن و دم زدن در حضور نتوانست تالقب اورا پیر تاریك کردیم و هکذا به کرات و مرات ګاهی با حضرت پیر و ګاهی به تنهایی می شدم و این ملحد را خوار و خجل میساختم اما ازین جا که دین و ملت بی حکومت حکام اسلام تقویت نمی یابد. فایده نکرد زیرا که بادشاهی اسلام نبوده تا سر اورا ببرند.))

اخوند درویزه همدغه مطلب په تذکره کې هم راوړي دې او هلته د حضرت شیخ علی ترمذي له خولی د پیر روښان په باب وایي: ((قوي بلا برین مردم افاغنین نازل شده. معلوم نیست که نابود ګردد. چه درین حدود بادشاه اسلام نیست زیرا که توضیح دین از علماء است و تقویت دین از امرا است.))

دا چې د روښانیانو د ټکولو د پاره به دوي ګورګانیان رابللی وي، د اخون پنجو په باره کې ثقه اسناد شته. اخون پنجو

د اخوند درویزه پیر و او دوست دی او درویزه هم د سیدعلی ترمذي مرید او خلیفه دی. سربیره پر دي اخون پنجو د بابر او د همایون دست پرورد، و. سید علی ترمذي د ګورګانیانو خوریی دی. دوي تول د پښتنو آزادۍ خوښونې او استقلال غوښتنی ته بغاوت او فساد او د روښانیانو په ضد سخت پروپاګند کوی. اخون پنجو جلال الدین اکبر ته چې د (دین الهی) خپروونکی دی او مایینه یې بت پرست ده، دعا کوی چې پر یوسفزیو مسلمانانو، عبدالله خان ازبك او روښانیانو باندې، بري ومومي. دا هم څرګنده ده چې جلال الدین اکبر د تولو مذهبی فرقو په نسبت له چشتیانو سره زیاته علاقه لری او سیدعلی درویزه او پنجو دري واړه د همدې طریقې پیروان وو. سیدعلی که پخپله دګورګانیانو معاش خور نه وي، نه به وی، خو پلار یې د همایون په لښکرو کې داخل او کومی دوې همیانی چې همایون ورکړې وې هغه یې خپل زوي یعنې سیدعلی ته ورکړې چې د شیرشاه سپاهیانو په دې دلیل چې، هغه د ګورګانیانو طرفدار دی ترې واخیستې.

سیدعلی دا هم وایي چې د شیرشاه سپاهیانو غوښتل چې د هغه د همایون د طرفدارانو په نامه ووژنی خو د خداي پاك په فضل له مرګه وژغورل شو.

اخوند درویزه او اخون پنجو روښانیان اباحتی بولي یعنې چې د هغو په نظر سماع او ساز او سرود مباح دی او له دې امله هغوي ته د کافرانو خطاب کوی په داسې حال کې چې په دې برخه کې ددینی علماوو تر منځ اختلاف دی او حتی د چشتیه طریقې ډله په وجد او سماع قایل دي. (وګورئ روحانی تړون) مخ (۴۸) او پخپله خوشحال ختك هم په دستارنامه کې

دې موضوع ته اشاره کړې ده چې د سماع او سرود په باره کې د علماوو تر منځ اختلاف شته، نو اخوند درویزه ولې د خپلې چشتي پیروانو سره مبارزه نه کوی؟

د اخوند درویزه یو بل غټ انتقاد دادی، چې د بایزید روښان په مریدانو کې، ښځې هم داخلې شوې دي که دا کار ناروا وی نو دا کار خو د اخون پنجو په شمول نورو صوفیانو هم کړي دي.

په (تحفه الاولیاء) کې راغلي دي چې علیخان محمدزایی د خپلې ترور په تشویق د اخون پنجو مرید شو. (مخ ۱۸).

خوشحال ختک به ښایی په لومړیو وختو کې اخوند درویزه ته عقیده درلوده خو وروسته یې په سواتنامه کې غندلی دی، او دده په باره کې داسې وایی:

*هغه وخت په پښتنو کې علم نه و*
*درویزه تر مجتهد لاور ته ښه و*

خوشحال ختک چې سوات ته تللی و، هلته یې د اخونددرویزه له پیروانو سره ټکر وکړ. ده په سواتنامه کې دغه موضوع په مفصله توګه څیړلې ده چې موږ د اخوند درویزه په باره کې دده یو څو بیتونه دلته راوړو:

*یو کتاب دی درویزه سره جوړ کړی*
*د سوات خلک یې له کل علمه موړ کړی*
*نامعقول مجهول بیان پکې بې ځایه*
*پکې بد د سید وایه یزید ستایه*
*دغه جاهل ملا چې داکتاب وکښلی*
*ما په داخبرو دی و ډیر ښکنځلی*

ملکان د یوسفزیو لکه خرونه
په ګندګی سره لړلي خولې، سرونه
نه یې علم، نه دانش، نه فهم پوهه
خو دوستي د درویزه باندې انبوهه
په ویل د درویزه عقیده څومره
لکه عین په آیت په حدیث هومره
درویزه چې بیان کړې خپل کتاب دی
نوم یې مخزن الاسرار کړی جناب دی
هر بیان یې ناموزون مجهول یې رنګه
خالي پاتو له دانشه له فرهنګه
که یوه مسره په شل، بله په سل ده
نامربوطه، ناموزونه په ویل ده
قافیه یې لام و دال سره وهلې
په ردیف کې یې نون واو سره پیلي
قصیده د (بوصیري) ترجمه کړې
عربي یې تر پښتو مضحك راوړې
مسالې یې نظم کړې په پښتو دي
درته وایم چې څه دي، د پښتو دي
په دا هسې شان کتاب یې مباهات دی
د جامي تر (هفت او رنګه) ورته تاویات دی
ګنده پرد ګنده خور سره جوړېږي
خاص په خاص او عام په عام ویل خوښېږي
ماوی دین د محمد ي ما منلی
بې قرآنه بل کتاب دی چا منلی

*درویــــزه نـــــه مجـــتهد دی نـــــه امـــــام دی*
*دی هــم خــام تاســې هــم خــام مخــزن هــم خــام دی*

د سـواتنامې لـه عـباراتو څخـه څرګـندېږي چـې اخونـد درویـزه لـه کـوم لـوري څخـه پښتـنو تـه رالـیږل شـوی و. (مـیان نـور) چـې د مخـزن مدافـع او لــه خوشـحال سـره یـې د اخونـد درویـزه پـه سـر شـخړه پـیل کـړې وه، د ګورګانـیانو پلـوی و. کلـه چـې (مـیان نـور) پـه بحـث کـې پـړ شـو نـو خوشـحال ده تـه تصحیت وکـړ، چـې دی باید پښتنو سره ودرېږي:

*(و مغلـو تـه کښـل چـې شـیخ مـیان نــور کـړه*
*مـاوی نــور دا هســې مکــړه ده مــنظور کــړه*
*وی یــې نــور مــې لــه مغلـو نــه توبــه ده*
*هــر چــې تــنګ د پښـتانه چـار مـې هغــه ده*

لـه دې څخـه هـر څـوك پـه اسـانی پوهـیدی شـي چـې ده د اخونـد درویـزه نـوم لـه کـور ګانـیانو سـره تړلـی و. اودده پـیروان نـه یـوازې د پیر روښان بلکې د خوشحال خان پر ضد هم دریدلی وو.

خوشـحال پـه عمومـی ډول پښـتانه د پـیرانو لـه پـیروي څخـه مـنع کـوي، کـه څـه هـم ځـینو پیرانو تـه پـه درانـده نظـر ګـوري خـو پښـتنو تـه اخطـار ورکـوي چـې پـه بـې علمـه پـیرانو او شـیخانو او بـې علمـه ملایانو پسې ولاړ نه شي. مثلاً دده دغه بیتونه وګوري؟:

*پــه مذهــب کــې ختـیك درسـت سـني مذهـب دي*
*امــا پـــیر ورتـــه لـــه جهلـــه لکـــه رب دی*
*کـــه پـــه دا ســبب کافـــر وي ګونـــدې ویـــنه*
*کـــه نـــه واړه پـــه مذهـــب کـــې ســني دیـــنه*

ښايي چې خوشحال په لومړي سر کې اخوند درويزه نه و پيژندلی خو وروسته يې سخت ښکنځلی دی او دده په باره کې د (مارچی) کلمه هم استعمال کړي ده چې د پوهاند حبيبي په عقيده (مارچی) هغه چاته ويل کيږي چې د اور وړ او شيطاني وي.

*هغه وخت په پښتنو کې علم نه و*
*درويزه تر مجتهد ورته لا ښه و*
*په مذهب سني مذهب و، خارجي شو*
*د يزيد په ستايش کې بيا مارچي شو*
*(درويزه) د درويزه او کره خوړلي*
*په دا مکر يې حلوا سره لړلي*
*چې يې توره وينځه هم نه وه د وړاندې*
*قچې قچې يوسفزيې شوې ترې لاندې*
*يوسفزيه په داکار کې بدکيشي کا*
*چې اصيل وو له کم ذات سره خويشي کا*
*په هغه اوان اکبر بادشاه بادشاه و*
*واړه خلق د پادشاه سره ګمراه و*

خوشحال چې د درويزه د موضوع په ارتباط د اکبر پادشاه نوم راوړي له هغې څخه څرګنديږي چې دده په نظر درويزه وال د اکبر په لمسه پښتنو ته راغلی وو. دی يوسفزيو ته وايي چې بايد له بيګانه خلکو سره خپلوي ونه کړي:

*درويزه له يوه لوريه راپيدا شو*
*په لړ علم په دا ملك كې لوی بلا شو*

مونت ستوارت الفنستن انګليسی مؤرخ له روښانيانو سره د اخوند درويزه د مخالفت علل په باره کې داسې وايي:

((اخوند درويزه د بايزيد لوی مخالف و... ده ډير اثار ليکلي دي، چې په وطنوالو کې يې ډير نوم لرى خو کوم آثار يې چې ما ليدلي دي د هغو په اساس ويلى شم چې که چيرې دده دلايل د مغلي امپراتورانو په لښکرو سره تقويه شوي نه واي د مياروښان نظريات به تر ډيره وخته پورې رد شوي نه واى.

د پورتنيو څيړنو څخه. داسې جوته کيږي چې له روښان او روښانيانو سره د اخوند درويزه، اخون پنجو او سيدعلى ترمذي د مخالفتونو د علل په باب دوه ډوله نظريه شته، چې يوه ډله ليکوال د اخوند درويزه ګانو په پلوی. د روښان سره د اخوند درويزه ګانو دمخالفت يوازينى سبب خالص مذهبى او فرقه يې مخالفت ګڼي، او بله ډله ليکوال بيا له روښان او روښانيانو سره، د اخوند درويزه ګانو مخالفت دښمني او مقابله يوازې او يوازې سياسي مخالفت ګڼي او د اخوند درويزه ګانو هلې ځلې، د روښان د سياسي حرکت په مقابل کې، سياسي مقابله ګڼي او د دواړو ډلو تر منځ د دښمنۍ علت خاص سياسي بولي. خو زما په فکر د روښانيانو او اخونددرويزه ګانو د مخالفت او دښمنۍ علت او سبب کومه خاصه مذهبي وجه نه درلوده او هم ددوی تر منځ د دښمنۍ سبب يوازې سياسي جنبه او اړخ نه لاره. بلکې په صراحت او ډاګه بايد وويل شي، چې د دواړو فرقو او طبقو د مخالفت علت د فورم او ظاهري شکل په لحاظ فرقه يې او مذهبى مخالفت و، خو د محتواپه لحاظ سياسي مقابله او مخالفت و. په دي دليل. چې د روښان بزګري نهضت او ملى حرکت د ګورګانيانو په مقابل کې، د فورم او ظاهرى شکل په لحاظ، فرقه اي، تصوفي او مذهبي و. مګر د محتوا په لحاظ دده

مرام او حرکت، سیاسي بڼه لرله. ده غوښتل، چې د ګورګانیانو د استبداد او تسلط په مقابل کې ټول پښتانه سره یوموټي او متحد کاندي. ددې کار له پاره یې دعوامو ډلو د سیکالوژۍ او تمایلاتو او اسلامي معتقداتو سره سم، خپل فرقه یې تصوفي او عرفاني او سیاسي مرام پر مخ بیوه.

څرنګه چې اکبر مغولي پاچا او دده پلویان لکه درویزه ګان او نور د روښان په سیاسي مرام، له هغه وخت نه ښه پوهیدلي وو چې روښان خپل فرقه یې اوتصوفي دعوتنامې د اکبر او سیدعلی ترمذي په عنوان او نومونو هندوستان ته واستولې، همدا وجه وه، چې د روښان ټولې مخالفې ډلې لکه اکبر پاچا، اخوند درویزه ګان، جابر حکمرانان د پښتنو قبیلو ځینې تفوق طلبه مشران د مذهب په ظاهري بڼه او جامه کې، د روښان د سیاسي حرکت د مخنوی په غرض هر ډول مقابلې او پروپاګند تبلیغاتو او هلو ځلو ته چمتو شول. او دخپل شوم غرض له مخې یې غوښتل چې روښان خپل سیاسي مرام او مقصد ته ونه رسیږي.

د دوي دا مقابله، چې د مذهب په جامه کې د قلم په حربه او د ژبې او نورو پروپاګنډې تبلیغاتو او وسایلو سره د روښان د سیاسي او ملي نهضت د پرمختګ په مقابل کې رابرسېره شوې وه. چې د روښانیانو دپرمختګ سره یې سخت ټکر وخوړ او د دوي په کارکې یې لوي خنډ واچولو.

# پنځم فصل



## د اخوند درویزه آثار اوتالیفات:

اخوند درویزه په پښتواو پارسی ژبو کې د څه لیکلو او له نورو ژبو د ترجمې توان درلود، ده په پښتواو پارسی ژبو څه رسایل او مضامین لیکلی او ترجمه کړی دي، دده په آثارو کې مشهور کتابونه، مخزن الاسلام او تذکره الابرار و الاشرار دي. مگر دی تر دغو دوو کتابونو سربیره دوه نور کتابونه هم لری چې ارشاد الطالبین او ارشادالمریدین نومي البته مخکې تردې چې زه د درویزه آثار در معرفي کړم تر هغه دمخه دا خبرې یادوم چې:

د پښتو د آثارو په ډېرو برخو کې موضوعي او جعلي روايات هم ګډ شوي دي چې، د مخزن په خطي نسخو کې دده دکورنۍ د ادباوو له ملحقاتو سربېره دده د ځينو پيروانو لکه عمرخان شلماني، ميرخان او اخوند احمد او خواجه محمد پارکي هم راغلي دي.

په همدغه وجه ددغو آثارو علمي او ديني حيثيت او مقام ته يې پوره صدمه رسولې ده. د درويزه د آثارو د لوستلو څخه اوچت څرګندېږي چې ده خپل اکثر آثار، علی الخصوص (مخزن) او (تذکره الابرار و الاشرار) د روښان او روښانيانو په ضد، د يو منفي پروپاګند تعاصباتو او سياسي او فرقه ييزو اغراضو په شکل د لوستونکو دغولولو او د روښانيانو نه د خلکو او د پښتونخوا د اوسيدونکو پښتنو د اړولو د پاره ليکلي دي، نه د شريعت د واقعي احکامو د واقعي تبليغ د پاره.

نو ويلای شو، چې د اخوند درويزه د آثارو ليکنه او طرزکلام د روښانيانو د ادبي حرکت او آثارو دعکس العمل په توګه منځ ته راغلي دي چې د فورم او شکل له مخه د روښاني ادب پيروي يې ګڼلی شو.[1] اوس د اخوند درويزه د آثارو پر شاوخوا به يو څه رڼا واچوو او وبه يې څېړو:

---

(۱) د اوسني ادب څېړونکي دا خبره نه مني، ځکه له يوه شخص څخه په پيروي کې يوازې شکلي خصوصيات ټاکونکي نقش نه لري، بلکه د شکلي مشابهاتو ترڅنګه موضوعي خصوصيات او فکري سير هم د سبك او بيا د ادبي مکتب په تشکل کې لوی لاس لري. د اخوند درويزه فکري مميزات له روښانيانو څخه بيل دي او په همدې اساس درويزه د يوه ځانګړي ادبي سبك خاوند سړی دی.

## ۱: - دمخزن الاسلام کتاب:

د مخزن د کتاب زیاتره برخې د اخوند درویزه ننګرهاري (۹۴۰-۱۰۲۸هـ ق مې) تالیفات او ترجمې دي، چې وروسته بیا دده زوي اخوند کریمداد (۱۰۷۲ هـ ق مې) دکتاب په ډول راټولې کړې او د ۱۰۲۴ هـ ق کال د محرمې په یوویشته (۱۶۱۵ ع) ورځخه فارغ شوی دي.

په دغه مجموعه کې د اخوندکریمداد ملحقات او د اخوند درویزه د ورور ملا اصغر یوه غزله هم شته. په ۱۱۱۲ هـ ق کال د مخزن الاسلام دوهمه پلا ترتیب د نوموړي اخوند کریمداد لمسی د میاتورمحمد زوي (مصطفی محمد) کړی دی. په دغه دوهمه پلا ترتیب شوې نسخه کې د اخوند درویزه د لمسیو عبدالحلیم بن عبدالله اخوند درویزه. او عبدالسلام بن پاینده محمد بن اخوند درویزه او نوموړي مصطفی محمد اضافې هم شته.

د مخزن الاسلام په هغه برخه کې چې اخوند درویزه کښلې او ترجمه کړې ده، په هغه برخه کې دغه آثار موندلي شو.

لومړي بیان: قصیده امالی. یوه لامیه عربی قصیده ده. ۷۳۰ بیته یې دي، چې مطلع یی داده:

یقول العبد فی بدالامالی
لتوحید به نظم کاللالی
ملیک مالك مولی الیالی
له وصف التکبرو التعالی

دغه قصیده، اخوند درویزه په پښتونظم کړې ده، چې پیل یې دادي:

په نامه د حق آغازکړم، اوس له دې علم کلامه دي رحمان رحیم، ښښتن دې، په ده چارمې شي تمامه.

پر دغه قصیده، اخوند درویزه پارسي شرحه هم کښلې ده، چې دغه شرحه د بیلې رسالې په توګه څو ځلا چاپ شوې ده

زمونږ د پورتنی ادعاء مصدق د محترم پوهاند (رشاد) سریزه ده چې د (ګلشن روه) (د تولونکی منیجر راورتی انګریزي ختیځ پوه) پر کتاب یې یوه مسبوطه او مشرح مقاله کښلې ده. دلته لیکو: (... ما یې د (۱۲۷۸ هـ ق او ۱۳۵۶ هـ ق) چاپې نسخې لیدلې دي او د دغو درو سرو نسخو په مقدمه ګوتې کې د قصیدهء امالی نظم امام محمد نجم الدین عمر النسفی (۴۷۱ - ۴۳۷ هـ ق) ته منسوب ښوول شوي دی. خو دمطلع په شرحه کې بیا د مصنف نوم په لومړي او دویمه نسخه کې (محمداولی) او په دریمه نسخه کې (محمدولی) کښلی دی. مګر ددغې پارسي شرحې کومه خطی نسخه، چې زما په کتب خانه کې خوندي ده، دمخه مقدمه ګوتې نه لری. او دحسن مطلع په شرحه کې د مصنف نوم (محمداولیس) راغلی دی. دمخزن الاسلام په هغه نسخوکې چې په ۱۳۰ هـ ق کال په ډهلی او په ۱۳۸۹ هـ ق (۱۹۶۹ ع) په پیښورکې چاپ شوی دی د قصیده امالی ناظم(امام محمد اولسی) او زما د کتب خانې په دویمه خطی نسخه کې (امام محمداوس) ښوول شوی دی. خو رښتیا خبره داده چې قصیدهء امالی امام سراج الدین او محمدعبدالله علی بن عثمان الاوش الفرغانوي (۵۷۵ هـ ق) په ۵۶۹ هـ ق کال نظم کړې ده. کیدای شي

چې (ابو محمد اوشی) د نقل کونکو له بې پروایو څخه په (محمداویس) اوښتی وي.[۱]

## دویم بیان قصیده برده:

په عربی ژبه یو لامیه قصیده ده. ۱۶۳ بیته لري. په بسیط بحر کې ویل شوېده پیل یې داسې شوی دی.

امن تذکر جیران بذي سلم
مزجیت د معاجوي من مقله بدم

د قصیدې ناظم شرف الدین ابو عبدالله محمد بن سعید البوصیري[۲] (۶۹۵ هـ ق مړ) دی.

د قصیدې اصلی نوم (الکواکب الدریه فی مدح خیرالبریه) دی خو په خلکو کې په قصیده برده سره ډیر شهرت لري.

دغه قصیده اخوند درویزه پښتوکړې د مقدمی پیل یې داسې دی:

*په نامه د حق به وایم چې د حق له برکته*
*په قیامت مې بخره وشي د رسول له شفاعته*
*کونډې ستا د (ذي سلم) یاران یادیږي*
*ځکه اوښکې دي له وینو ګډي وډې د باران په دود اوریږي*

دریيم بیان =- القاید النسفیه.

په علم الکلام کې یوه مشهوره او معتبره عربی رساله ده. چې شیخ الاسلام امام نجم الملة والدین ابو حفص عمر بن

(۱) د امالی بله پښتو ترجمه دځمکنو میاعمر صاحب رحمت الله علیه (۱۱۹۰ هـ ق مړ) کړیده دغه شرح (المعالی فی شرح الامالی) نومیږي.
(۱) بوصیر د مصر په صعیه کې د یوکلی نوم دي

محمد بن اسماعیل بن محمد بن القمان السفی (۴۶۱ یا ۴۷۱ - ۵۳۷ هـ ق) کښلې ده.

دا رساله پر درو مقالو ویشلې ده په پای کې خاتمه ګوتې هم لري. په لومړۍ مقاله کې د خدای(ج) په دوهمه مقاله کې د نبوت، او امامت په دریمه مقاله کې د آخرت په باب څیړنه شوې ده. مولف تر مقدمې وروسته په اصل مطلب داسې شروع کړیده؟

((قال اهل الحق حقایق الاشیاء ثابته و العلم بها متحقق خلافاً للسوقسطائیه و اسباب العلم ثلثه الحواس اللمه والجزء الصادق و العقل...))

پر دغې رسالې باندې په ۷۶۸ هـ ق کال علامه سعدالدین عمر التفتازانی (۷۹۱ هـ ق مړ) یوه ګټوره شرحه کښلې ده. دغه کتاب د (شرح عقاید) په نامه د افغانستان پاکستان او هندوستان په دیني مدرسو کې تدریس کیږي او د اهل سنتو د علم الکلام په نصاب کې شامل دي.

اخوند درویزه القصاید النسفیه پښتو کړې دی. ځای ځای یې د علامه تفتازانی له شرحې څخه هم د توضیح له پاره ګټه اخیستې ده. د اخوند درویزه پښتو ترجمه داسې شروع شویده:

*د هر چیز اصل ثابت دی خکه نوم باندې رغیږي*
*هم په عقل راکښیوزي هم دا علم ور رسیږي*
*د اشیا اصل ثابت دی اوهام نه دي ته اګاه شه*
*نه اوهام لري سودونه نه یې زیان ویل رسیږي*[1]

(۱) په زیاترو نسخو کې دا نیم بیتی داسې کښلی دی (چې اوهام څیزونه لري سودونه نه یي زیان و بل رسیږي.)

(چې) دوی وایي دا اوهام دي له صانعي منکریږي [۱]
په حجت د اهل شرعې دوی په اور کې داخل بویه [۲]
ځکه دا اور دې هم اوهام شي چې په دوی به نه لګیږي
اهل حقو دې ویلي چې بیشك صانع قدیم دی
د عاقل حجت دغه دی بې استاځه نه رغیږي
دا اشیا واړه حادث دي له نابوده پیدا شوي
هر چې وشو یا به شینه (هغه واړه فنا کیږي) [۳]
دحق ذات صفات قدیم دي (کل احیا یی له قدرته) (پیدا شوي) لیدا کیږي

ځلورم بیان - خلاصه کیدانی:

په عربي ژبه د لمانځه په باب د حنفي فقه یوه کوچنۍ رساله ده. لطف الله نسفي الکیداني (۷۵۰ هـ ق مړ) کښلې ده. یوه مقدمه، او اته بابه لري. اخوند درویزه دغه رساله په پښتو اړولې ده. پیل یې دا ډول دی:

بسم نام د الله خدای دی
کارساز د کل عالم د بنده ګانو [۴]
(دی) رحمان مهربان خدای دی
رزق روزي ورسوینه ومؤمن کافر جمله ځانورانو [۵]

---

(۱) په زیاترو نسخو کې د (منکریږي) کلمه (منکر دي) کښلې ده.
(۲) په زیاترو نسخو کې د ((داخل بویه)) پر ځای ((کښیښولی)) راغلی دی.
(۳) ددغه بیت عربي متن داسې دی: (و العالم حادث و هو قابل بل الفنا ...)
(۴) د (کارساز) کلمه دلته په دریو هجاوو لوستل کیږي.
(۵) خلاصه، کیداني په پښتو ژبه کې دوې نورې ترجمې هم لري. یوه یې د ځمکنو د میا عمر صاحب (۱۱۹۰ هـ ق مړ) او بله یې د ملا عبدالحمید الکوزي وه چې د ژوند زمانه یې د دیارلسم هـ ق لومړۍ نیمائی ده.

د مخزن الاسلام دغه برخه جارج راورټي هم په (ګلشن روه مجموعه) کې د مخزن پښتو) تر عنوان لاندې اخيستې ده، چې په ګلشن روه مجموعه کې (له ۱۴۱ مخه څخه تر ۱۵۰ مخه پورې) په لسو مخو کې ليدل کيږي.

پنځم بيان - دوهم فصل - د دوولسو فرقو عقايد:

يوه پارسي رساله ده، چې لومړي شيخ الاسلام امام نجم الملة والدين ابوحفص عمر بن محمد بن اسماعيل النسفي (۴۷۱ - ۵۳۷ هـ ق) کښلې ده. [۱]

په دې رساله کې شيخ الاسلام تصوف څه دی، او صوفي څوک دی پوښتنو ته جواب ويلی دی او د متصوفينو او مستصوفينو هغه دوولس ډلې يې معرفي کړې دي چې دده په زمانه کې دحبيبه اوليائيه، شمراخيه، اباحتيه، حماليه، خلوليه، حوريه، اقفيه، متکاسله، متجاهله، الهاميه (الحاقيه) او سينه (ناجيه) په نومو موجودې وې. اخوند درويزه دغه رساله پښتو کړې ده او پيل يې داسې دی:

*دنسفي هسې ويلي مبرهن دي*
*چې صوفيان د حق دوستان دي*
*هم (مشغول د خپل) زړه په پاک کردن دي*
*دوی پرې اينې غيرې مينې اشنايي دي*
*موافق څي له کتابه*
*اراسته د پاک رسول په نبه سنن دي*

---

(۱) نسف له اند خويه څخه دشمال خواته تقريباً ۳۴ ميله ليرې د امو پر غاړه باندې واقع و، اوس ددغه ښار پر ځای قرشی ودان شوی دی. نسف د تخشب (مخش) محرف شکل دی.

پاك الله دي په دوستی واړه نیولي
چې له خلکو تیراکا
تغښتې دوی د شریعت په پیراهن دي

د مخزن اسلام دغه برخه جارج راورټي هم په (گلشن روه) کې اخستې ده. تر (راورټي) دمخه پروفیسر (ډورن) هم د مخزن الاسلام یوه برخه د مخزن پښتو تر عنوان لاندې په پښتو منتخباتو کې اخیستې وه.[1]

مخزن الاسلام یوسل و دیارلس کاله پخوا د ډهلي په هندو پریس، بیا په ۱۳۰۱ هـ ق کال د ډهلي په فاروقي مطبعه په ۱۳۲۶ ع) کې د لاهور په اسلامیه پریس. په ۱۹۶۹ ع کال (۱۳۸۹ هـ ق) د پیښور په حمیدیه پریس کې چاپ شوی دی.

په دغه وروستی چاپ کې د ښاغلی تقویم الحق کاکاخیل خټك یوه عالمانه او تحقیقی مقدمه هم شته، چې په ۸۱ مخونو کې ځاي شویده.

د مخزن الاسلام خطي نسخې خورا ډیرې دي او نور چاپونه هم لري.[2]

اوس چې تاسې د (مخزن الاسلام) کتاب په هکله زمونږ ناچیزه څیړنه او لیکنه ولوسته راځئ چې اوس د ځینو ختیځ پیژندونکو مشهورو او نامتو شخصیتونو علمی نظر د مخزن

---

(۱) د هند د کتابخانو پښتو خطي نسخې د تعلیقاتو ۷۳۲ مخ کې راغلی دی چې مخزن الاسلام تر ټولو د مخه په ۱۲۸۴ هـ ق کال په پیښور کې چاپ شوي دی.

(۲) په ۷۲ مخ کې ددغه ځای پاورقی.

کتاب په باره کې ولیکو تر هغې چې محترمو لوستونکو ته ددغه کتاب اصلي کیفیت او څرنګوالی معلوم شي.

د شوروی اتحاد مشهور ختیځ پوه او د پښتو ادب پیاوړی پیژندونکی اسلانوف چې د مخزن کتاب پر شاخوا او محتویاتو هر اړخیز او بیطرفانه قضاوت کوي او په خپل اثر (د روښانیانو ملی نهضت) کې خپل علمی نظر داسې څرګند وي: (اخوند درویزه په پښتو یو کتاب لیکلی دی چې (مخزن الاسلام) نومیږي دا کتاب یو د مباحثی او مناظرې نه ډك شویدی. دا کتاب څو ځلې چاپ شوی دی او د اسلامي معتقداتو مجموعه ده. دا کتاب یو هدف لري چې هغه د بایزید دتعلیم او تبلیغ ابطال او له منځه وړل دي. مخزن الاسلام د پښتنو د ساعت تیری شیان لکه: اتڼ، میلې، سندرې او نغمې ګناه تلقی کړې ده او ډیر محدودیتونه یې منځ ته راوستي دي).[1]

د شوروي اتحاد نوموړی نامتو او پیاوړي محقق زیاتوي چې: د درویزه د کتاب په هر ځای کې پر بایزید لعنت ویل شوی دی او دده تعلیم او تبلیغ تر ټولو بد معرفی شوی دی.

د درویزه ورور ملا اصغر په دې کتاب کې یوه شعری لعنت نامه ځای کړی او د بایزید په ادرس یې ورلیږلی وه. ده دا ورته لیکلی و، چې ګواکې حضرت محمد ستا د مذهبي ډلې د پیدایښت پیشبیني کړې وه، مګر لادمخه یې اخطار ورکړی و، چې دا به د ټولو بدعتونو او کفر خورا بده نوعه وي. ددې

(۱) د (روښانیانو ملی نهضت) د شوروي ختیځ پیژندونکی استاد اسلانوف اثر، مترجم، محمد اکبر معتمد، پښتو ټولنه، کال ۱۳۵۳، دولتی مطبعه د بایزید روښان د ترپوال سیمینار په ویاړ خپرونه، ۲۴ مخ.

کتاب هغه برخه، چې د روښانیانو تاریخ یې په مغرضانه روح لیکلی دی، د لومړي ځل دپاره د نولسم قرن په سر کې د (لیدین) ختیځ پیژندونکی انګلیس له خوا ترجمه شوی دی.

څرنګه چې له دغې انګلیس ترجمې نه، د ماخذ په حیث زمونږ ختیځ پیژندونکي استفاده کوی نو زه مجبور یم چې دوی ته دا اخطار ورکړم، چې د (لیدین) ترجمه بیخی د غرض نه ډکه ده حقیقت دادی، چې دا ترجمه نه ده، تحریفات پکښې ډیر دي او څه یې چې زړه غوښتي دي هغه یې لیکلی دي، دلته یو مثال راوړم، د لیدین ترجمه داسې ده: (کله چې بایزید کانی ګرام ته مراجعه وکړه، نو خیله شو، او په غره کې یې یو غار ځان ته د عبادت د پاره انتخاب کړ) خو د درویزه عبارت په (مخزن) کتاب کې داسې دي: (خلوتونه یې بنیاد کړ، عامی خلك یې وربالن) چې دا دواړه عبارتونه چې یو اصل، او بل ترجمه دی سره، سر نه خوري.

درویزه په عمومی ډول سره تل دا خبره کوي، چې بایزید عوام الناسو ته مراجعه کوی او دغه ساده خلك استعمالوي او پوه او خواص نه وربانديٍ غولیږي.

د پورتنی څیړنې څخه جوته شوه، چې اخوند درویزه د خپل معاصر لوړ شخصیت یعنې د پیر روښان او د روښانیانو له کلکو مخالفینو څخه و. او (مخزن الاسلام) یې ددغه مخالفت په اغیزه له روښانی تحریك سره دمقابلې لپاره او هم د بایزید روښان د ملی او سیاسي نهضت د شنډ ولو په مقصد او د هغه د عرفاني او تصوفي تبلیغاتو پر ضد یې کښلی دی. په همدې وجه اخوند درویزه د مخزن کتاب په شروع کې داسې راوړي او لیکلي دي:

((اما سبب تالیف این کتاب معلوم بادکه فی زمان در افغانان یوسفزي زندیقی پیدا شده بود... دران ایام شهرتی تام یافته. تام او بایزید بود. لقب خود را پیرروښان کرده و فقیر لقب اورا پیر تاریك کرد ...

بر زبانی افغانـي شعر میگفت... فقیر برخلاف او شعر هاي افغاني آغاز کرد...)) [۱]

## ۲- تذکره الابرار و الاشرار:

د اخوند درویزه یو بل کتاب چې په پارسی ژبه دی ((تذکره الابرار و الاشرار)) نومیږي.

په نوموړي تذکره کې اخوند درویزه د پښتنو تاریخ د غرض نه په ډکه روحیه لیکلی دی او هم د درویزه یوه مکمله بیوګرافی په دې کتاب کې شته او هم په دې کتاب کې د روښانیانو د پاره یو مخصوص باب وقف شوی دی او هم دکتاب په ټولو جریاناتو او مباحثو کې قدم په قدم روښان او روښانی ډلې ته بده یادونه شوې ده او د روښانی ډلې پر مشرانو لعنتونه او نفرتونه ویل شوي دي، خو سره ددې ټولو خبرو بیاهم په دې اثر کې د څیړونکو او متبتعینو د پاره ځینی ګټور معلومات لکه د پښتنواو ازاد و قبایلو ملی روحیات او هم د هغه وخت او د هغې سیمې د ژوند حالات، د دوی اقتصادي، اجتماعـي بڼه او څرنګوالی او تر ټولو مهم د پښتو او د ټولو افغانانو ټولنیز ژوندون او د دوي سیکالوژي د اخوند درویزه په نوموړي اثر کې بریښی او انعکاس مومي. خو

---

(۱) دمخزن د کتاب پیل، د اخوند درویزه په قلم، پښتو اکیډیمی پیښور، ۱۹۶۷

افسوس چې د پښتو اصلي او حقیقي تاریخ یې جعل کړی دی. پښتانه یې سامي نژاد او اسرائیلي ښودلي دي نه ارین نژاده.

بل داچې دپښتنو تاریخ یې په رویاتو او افسانو ډك کړی دی او د مستندو دلایلو هیڅ کومه پته پکې نشته او زیاتی جعلي دي.

## لکه دا لاندې قصه:

((خلك قصه کوي - چې پښتانه داسې عادت لري چې د شریعت نه مخالف دي هغه دا چې کله زامن لوی شي او د سړیتوب وخت ته ورسیږي نو د مور او پلار دارایی او مال په خپل منځ کې سره ویشي او دوی ته یوازې داسې لږ څه د خوراك او دفن د پاره پریږدي او حال دا چې دمحمد(ص) په شریعت کې داسې ده چې کله زوی لوی شي نو دی باید پخپله خپل ځانته د کوم کسب په ذریعه خوراك او د ژوند ضروریات پیدا کړي او په مور او پلار یې نور حق نشته او که چیري ړوند او معیوب و نو بیا بل حکم دی.)) [۱]

همدارنګه درویزه لیکي چې: د یوسفزیو یوه برخه د شپاړسم قرن په آخر کې ما په دې قانع کړه چې د روښانیانو په خلاف پورته شي او د اطاعت نه یې وګرځي.

وروسته ورپسې زیاتوي چې د روښانیانو په حرکت او نهضت پورې د سپین غره زیاتره خلك پیوست شوي وو. دوي لمنځونه پرېښې وو روژه یې خوړله. ذکات یې نه ورکاوه، د عالمانو سره یې دښمني کوله او داسې نور بدکارونه یې کول.

---

(۱) د درویزه تذکره الابرار و الاشرار، ۸۸ -۸۹ مخ پوري، پېښور، ۱۹۶۰.

## ۳ – ارشاد الطالبین:

دا هم د اخوند درویزه یو تبلیغي او دیني اثر دی، ارشاد الطالبین اخوند په پارسي ژبه لیکلی دی، او په نثر دی. د اخوند ددغه پارسي کتاب خطي نسخې یو ځای پیدا کیږي. او یوسل کاله دمخه په ډهلی او لاهور کې چاپ شوی دی.

د اخوند درویزه ارشاد الطالبین ډیر ځله د پښتنو علماوو تر استفادي لاندی و.

سید حسین نومي ددغه کتاب ځینې قصې په پښتو نظم ژباړلې دي. او مولوي محمد رفیق اکبر پوری دغه کتاب ټول په پښتو نظم اړولی دی.

## ۴ - ارشاد المریدین:

دا کتاب هم اخوند درویزه په پارسي نثر کښلی دی، په دې کتاب کې صوفیانه او دیني مسایل په تبلیغي بڼه بیان شوي دي. ارشاد المریدین یوسلوشل کاله دمخه په هندوستان کې چاپ شوی دی.

په ارشاد المریدین کې د مریدانو لپاره ځینې لارښوونې او ارشادات راټول شوي دي.

### په فني نثر کې د اخوند درویزه د لیکنې نحوه او دده د نوشتو د اشکالو څرنګوالی:

سره له هغه چې د اخوند درویزه د آثارو لیکنه او دده د کلام دا طرز او د لیک بیان او اسلوب، د (فني نثر) ډول، ښیې، خو بیا هم دی د (فني نثر) واضع نه دی او په پښتو ادب کې د کوم خاص سبك علمبردار او مؤسس، نه ګڼل کیږي. بلکې د روښان د ادبي سبك (فني نثر) پیرواو شاګرد ګڼل کیږي او داځکه د روښان د (خیرالبیان) ادبي سبك په قصدي او اداري

توګه تعقیبوي، چې د خیرالبیان د ادبي سبك د خوښ کیدو او خوښولو په پلمه او بهنه اصلاً د روښان خیرالبیان مؤلفه کتاب، ماتول او مقابل کول غواړي ځکه نو د خیرالبیان ادبي سبك پیروي کوي. خو په پښتو ادب او د پښتو په فني نثر او ادبي سبك کې د روښان لومړني لوړ مقام ته رسیدلای نشي، بلکې په پښتو ادب او د پښتو په ادبي سبك کې اخوند درویزه وروسته له روښان نه دوهم ادبي مقام (په فني نثر) کې لري.

ځکه چې فني نثر دده په آثارو کې ډیرې نیمګړتیاوې لري. او یو علت یې هم دادی چې دی مقلد و. نه موجد یعنې اخوند درویزه په پښتو ادب او د پښتوژبې په نثر لیکنه کې دکوم خاص مکتب مؤسس نه دی.

د اخوند درویزه له آثارو څخه (چې وروسته به یې وڅیړو) داسې بریښي، چې دده طرز کلام او دکلام اسلوب او هم دده د بیان څرنګوالی او جمله بندي تراکیب او دجملاتو انسجام او د معنی رسایی د روښان کلام او د روښان د کلام اسلوب ته نه شي رسیدلای.

# شپږم فصل

## داخوند درویزه پیروان

د پښتو د ادبیاتو په تاریخ کې چې زموږ ادبپوهانو کوم ادبي مکتبونه ټاکلي دي. په هغو کې یو د اخوند درویزه مکتب دی. دامکتب ځانته خاص خصایص او ځانګړنې لري، چې په نورو ادبي مکتبونو کې نشته او دده مکتب له نورو مکتبونو څخه بیلوي.

هغه خصوصیات چې زموږ ادبپوهانو د اخوند درویزه د سبك له پاره ټاکلي دي:

۱ - داخوند درویزه د لیکنې سبك نیم منظوم دی.[۱]

۲ - په دې سبك کې له عربي او پارسي ژبو څخه ترجمې ډیرې باب دي.

---

(۱) اکادمیسین رشاد دا وایي چې، د اخوند درویزه مخزن زیاتره منظوم دی

۳ - دا سبك عربي او پارسي الفاظ ډیر لري.

۴ - په دې سبك کې تبلیغي خوا ډیره قوي ده.

۵ - ددې سبك هنري او فني خوا د تبلیغ تر تاثیر لاندې واقع ده، نو ځکه قوي نه ده.

۶ - په دې سبك کې د مقابلې او د روښانـي ډلـې پر ضد مسایل ډیر موندل کیږي.

ځینی پوهان د اخوند درویزه سبك د روښان د سبك تابع ګڼي او وایي چې د رویزه د روښان پیروي کړې ده[1] دا خبره د اوسنیو مطالعاتو له مخې سمه نه ده، ځکه یوازې د فورمي ځانګړنو مشابهت د سبکونو په یووالي کې زیات پدل نه لري بلکه فکري ارزښتونه او ژبنی خصوصیات د سبك په تعین کې تاکوونکی موقف لرلی شي. چې په دې توګه د بایزید د خیرالبیان او داخونددرویزه د مخزن خصوصیات سره بیل دي.

د اخوند درویزه دا سبك دده د کورنی ځینو ادیبانواو دده ځینونورو فکري پیروانو هم ومانه او حتی تر دولسمې پیړی پورې په پښتو ځینی آثار د اخوند درویزه د سبك په پیروي ولیکل شول، او ټولې هغه فني او فکري ځانګړنې، چې د درویزه په آثارو کې منعکسې شوي وو، دده د پیروانو په آثاروکې یې پیروي وشوه، چې په دې توګه دده. د کورنی او دده د نورو پیرانو ځانګړي سبکونه د اخونددرویزه د سبك د تاثر لاندي راغلل او له دغو سبکونو څخه دده مکتب رامنځ ته شو. دادی په دې لیکنه کې زه لومړی دده د کورنی هغه ادیبان ښیم چې د اخوند د سبك پیروان او دده په مکتب کې شامل دي.

(۱) وګوري، تاریخچه‌ء سبکهاي اشعار پښتو د ۱۳۱۹ هـ ش کال، د کابل- کالنی. د علامه حبیبی لیکنه او هم د پښتانه شعراء د لومړي ټوك مقدمه

او هم دده د نورو پيرو وانو شرح حال راوړم.

د اخوند درويزه په کورنۍ کې هم ځينې نامتو عالمان راپيدا شوي دي، چې په پښتو يې آثار کښلي دي. دده د کورنۍ هغه اديبان چې په پښتو کښنې لري او هم دده نور پيروان دادي.

**کريمداد**: د کريمداد پوره نوم عبدالکريم دی او په کريمداد شهرت لري په خپلو اشعارو کې کريمداد او کريم تخلص کوي. د اخوند درويزه نامې زوی دی او يو مشهور عالم او عارف سړی تيرشوی دی. په تصوف او سلوك کې د معرفت او حقيقت د اسرارو او رموزونو نه ډك بيانونه لري او د طريقت په سلسله کې د لوی لاس خاوند دی.

کريمداد په مخزن کې له خپله ځانه هم زياته برخه لري ډير خلك ورته د (پښتو محقق) وايي. دی که څه هم دخپل پلار په سبك ليکل کوي، مگر د هغه په سبك کې يې د فکر او لفظ په لحاظ څه اصلاحات هم کړي دي. د نوموړی د خپلو تصنيفاتو د بيان څخه ثرگنديږي، چې د خپل پلار (اخوند درويزه) ټول تاليفات يې راټول کړي او بيا يې ترتيب کړي دي.

اخوند کريمداد چې د اخوند درويزه د شپږ کتابونو ترتيب او تصحيح کړې ده هغه دادي:

| | |
|---|---|
| ۱ – تذکره الابرار والاشرار | (پارسی) |
| ۲ – شرح امالی. | |
| ۳ – برهان الانبياء و الاولياء | (پارسی) |
| ۴ – ارشاد المريدين | (پارسی) |
| ۵ – ارشاد الطالبين | (پارسی) |
| ۶ – مخزن الاسلام | (پښتو) |

په دې شپږو کتابونو کې د (برهان الانبیاء) [۱] کتاب زموږ په لاس کې نشته او یوازې ذکر په ارشادالمریدین کې راغلی دی.

کریمداد چې د پښتو ادب په لړۍ کې کوم د ستاینې او قدر وړ کار او یادګار له ځانه پرېښی دې، هغه د مخزن الاسلام په نوم د اخوند درویزه ګڼ شمیر پښتو مقالې او مضامین یې راټول کړي او ترتیب کړي دي. مخزن په پښتو کلاسیکو ادبیاتو کې علمی، ادبی او تاریخی حیثیت لري او د پښتو ژبې د ډیر پخوانی لیك دود او ځانګړي سبك ښکارندوی دی.

د اخونددویزه له مرګه وروسته ډیرو عالمانو او ادیبانو د پښتو ژبې په مختلفو علومو او فنونوکې ددغه طرز او سبك پیروي کړې ده.

او د یوه مخصوص سبك او مکتب په حیث تر دوو پیړیو پورې دمخزن د انشاء طرز او طریقه د علمي او دیني مسایلو او مضامینو دبیان دپاره غوره طریقه ګڼل شوې ده، د اخوندقاسم پابین خیل دفواید شریعت، دحسین بابا خلاصه الاسلام، د حاجی ابراهیم قصه دزقوم، دبابوجان د دیوان څه برخه اوپه پای کې دصفی الله ختك مخزالاسرار ددې سبك اوروش غوره نمونې دي.

د مخزن مضامین چې کریمداد جمع او ترتیب کړي دي په لاندې ډول دي:

۱ – په مخزن الاسلام کې داخونددرویزه د تالیف برخه د ۱ مخ نه تر ۱۳۳ مخ پورې.

---

(۱) تیر هیر شاعران د عبدالحلیم اثر افغانی. د کتاب پنځم مخ، ۱۹۶۳ عیسوي کال د پیښور چاپ.

۲ – دپنج ګوهر برخه دملا عبدالسلام تالیف په ۱۳۳ مخ کې.
۳ – غزل دکریمداد دتالیف برخه په ۱۳۳ مخ کې
۴ – الفنامه دکریمداد دتالیف برخه د۱۳۳ مخ نه تر ۱۵۲مخ پورې.

کریمداد چې په پښتو ژبه کوم مضامین د تصوف سلوك او معرفت په باب لیکلي دي هغه د اخوند درویزه په پیروي دي، مګر د نوموړي په مخصوص سبك کې یې د فکر او د الفاظو د ترکیب په لحاظ اصلاحات کړي دي. مسجع نثر یې د نظم تر حده او د قافیه دار شعر تر اندازې رارسولې دی.او په کومو ځایونوکې چې د اخوند درویزه پیروي کړي ده، په هغې کې یې هم د موزونو الفاظو په راوړلو سره لفظي او معنوي ښکلوالي پیداکړی دی.

مرحوم پوهاند عبدالحی حبیبي په (تاریخچه، سبکهاي پښتو) کې لیکلي دي چې دریم سړي چې د اخوند سبك له یې رونق ورکړی دی، کریمداد یا عبدالکریم د اخوند درویزه زوی دی او دا عالم په صوري او معنوي کمالاتو سره موصوف و. او د مخزن الاسلام مختلفې برخې یې راجمع کړي دي او هم یې د خپل پلار په دغه سبك کې زیاتولی کړي دی، کریمداد په رښتیا د عرفان په عالم کې شهرت لري او دخلاصه البحریه کتاب کې د افغان محقق په نوم یاد شوي دی، مفتي غلام سرور او رحمان علی لاهوري هم، دده ستاینه کړې او دده د علم او عرفان مرتبې یې ډیرې لوړې ښودلي دي. د (خزینه الاصفیاء تذکره علماء هند ۱۳۱ په حواله چې دی په سنه ۱۰۷۲ هـ کې وفات شوی دی. کوم تعلیقات چې کریمداد د خپل پلار په تالیف مخزن الاسلام کې کړي دي، د هغې نه دې نتیجې ته رسیږو، چې ده دخپل پلار په سبك کې اصلاحات کړي، او نیم

منظوم مصنوعي شعر یې د عروضي شاعرانو سبك ته نږدې کړی دی. برسیره پر دې د افکارو او معاني له پلوه یې هم ډیر اصلاحات په تصوف او عرفاني شعرونو کې په پښتو ژبه کې راپیدا کړي دي، عشقي شعرونه یې هم ویلي دي، حال دا چې د پلار شعرونو نه یې د فقهي، عقایدو او اخلاقو په مسالو پورې تړلي دي لکه چې دی وایي:

دایم و ته حضور شه
له جمله غفلته دور شه
ستا داخپل صورت تیاره دی
تیاره واخله یو نور شه
کل امکان دې وچ وانښه کړه
ته ددې ونښه تنور شه
شهی ستا صورت افتاب دی
د افتاب په دود یو نور شه
اي طالبه! که طلب کړې
هر شاه وسوزه چور چور شه
درویشان بار داره ونه
ته په ونه کې انګور شه
دا زړګی د کورو رنګ کړه
د اثبات په میوه پور شه
د صورت پرده کړه څیرې
د معنی په سر مستور شه
کریمداد لکه احد غایب مه اوسه
لکه وحدت هسې منشور شه

## مصطفی محمد:

مصطفی محمد د میا نورمحمد زوی، د عبدالکریم لمسی، او د اخوند درویزه کړوسی دی، د اخوند درویزه د مخزن الاسلام یوه نسخه یې په ۱۱۱۲ هـ ق کې نقل کړې ده. چې دهغې له مخه دغه کتاب بیا د پېښور پښتو اکاډیمی له خوا په ۱۹۶۹ ع کال چاپ شوی دی. د کتاب په پای کې په خپله دمصطفی محمد څو شعرونه هم راغلی دي. (۱) (۲)

ي - یاري غواړم له تانه
زماخدایه مهربانه
که توفیق مې کړي په بخره
زه به نشم بې له ایمانه
که متابعت د پاك نبی مې کړې په بخره
ماخلاص کړې له میزانه
هم له نفسه له شیطانه مې پناه کړه
زما بنده خدایه سبحانه
امیدوار دي یم له رحمه
کرم ته وکړه رحمانه
که کوخه کړې د کرم را برابره
زه به خلاص شم له تاوانه
او خلاص مې له دوزخه له عذابه دی په فضل
نه په ډیر رنګه کوښښ نه ډیر عمل له خپله ځانه
مصطفی محمد یو ګناهګار دی
و شفاعت د پاك رسول ته امیدوار دی

(۱) دمخزن الاسلام چاپي نسخه - پېښور، ۱۹۴۹ ع کال
(۲) د پښتو د ادب تاریخ - کابل، ۱۳۲۵ هـ ش کال پوهاند صدیق الله رښتین

کــــــه یـــــــې ونســـــــی لــــــــه لاســـــــه
محمـــــد رســـــول الله پـــــه انبـــیاوٴ کـــــې تـــــرخان دی

**خـــالق داد**: د آخونـــد درویـــزه زوی دی، دی هـــم د پښـــتو شـاعر او لـیکونکی و، یوکـتاب یـې د (شـرایط او احکـام ایمـان) په نامه په پښتو منظوم کړی دی.

د خالقداد نور څه معلومات په لاس کې نه شته.

**مـلا اصـغر**: دا سـړی داخوندرویـزه ورور دی، دی هـم مـلا او شـاعر و، دمخـزن پـه اخر کـې یـې یـوه مـات ګـوډ غونـدې شـعر راغلی دی چې د سربیت یې دادی:

*واوریٔ یـارانـو نـبی نـاست په جـماعـت و*
*جبرائیل و پرې راغلی له نبه خدایه پرې رحمت و*

**عبدالسـلام**: د اخـون درویـزه پـه شـاګردانو او پـیروانو کـې حسـابیږي، دمخـزن پـه یـوه نسـخه کـې یـې دکـلام نمونـه لـیدله شـوې وه. شـعر یـې عروضـي څواتـه نـژدی دی. خـو نـور معلومـات یې په لاس نشته. د عبدالسلام یوه ټوټه کلام دادی:

((یـو وېـې بـه درتـه وایـم د صـدیق د بـزرګی. د رسـول لـه جماعـته چې صـدیق و سـرحلقه د اولـیاو دغـه لـوي یخرې موندلـې له رحمته

دویـم عمـر فـاروق دی چې مکـه یـې کـړه وزګـاره. لـه کافـرو لـه بـتانو پـه یکلخـته دریـم عـثمان ذی النوریـن دی چـې درسـت کـاروان یـې دخدای پـه رضـا ایښـی چې خبر شـو د رسـول لـه نبوته. څلورم یـې مرتضـی علـی دی، چـې پـه دی بـه دلـدل سـور شـو دغـه کافران یې مړه و له هیبته)).

**عمرخان:** دمخزن په یوه نسخه کې یې اشعار راغلي دي، داسې معلومیږي چې د درویزه له پیروانو څخه دی، په خپله اخون درویزه په تذکره کې وایي چې، ملا عمر شلماني زما شاګرد و، د عمر خان کلام بیخی د اخون درویزه دکلام په شان دی لکه چې وایي: [۱]

*دا بیان اخون ویلی په پښتو*
*و معنی یې په هر چا ویلی نه شوه*
*بیچاره عمرخان چې ورخبر شه*
*تار په تار معنی یې ووی*
*دی فاسق پراګنده په مخلوقات کې*
*پرده فهم له څښتنه عنایت دی*

**رحیمداد:** داسې هم داخون درویزه له اولادې اوکورنۍ څخه معلومیږي، کیدای شي چې یایې زوی اویایې لمسی وی، د مخزن په یوه قلمی نسخه کې چې، په د(۱۱۴۴ هـ)کې لیکل شوې ده دده یوه خورا خوږ مدحیه شعر راغلی دی، چې یوڅو بیته یې دادي:

*تر شیرین اسم دې جارشم محمده*
*سرفراز دې په دیدار شم محمده*
*سعادت د دوارو کونو زما دادي*
*که دې خاورې د دربارشم محمده*
*در مې وبوله چې درشم ستا تر دره*
*ترینجرو به دې بلهار (۱) شم محمده*

---

(۱) د پښتو ادب تاریخ، د پوهاند صدیق الله رښتین تالیف، د ۱۳۲۵ هـ. ش دکابل چاپ.

ستا ثنا په د لویې ویلای نشم
که بلبله د سهار نشم محمده
ستا له جامه جرعه راکړه چې نوش کړم
سرتر پایه په خمار شم محمده

**عبدالرحیم:** د مخزن په دغه وړاندې نسخه کې، ددې سړي شعرونه هم راغلي دي مګر په یقین نه ده معلومه چې، څوك و. د احمد شاه بابا په زمانه کې یو بل عبدالرحیم ناص شاعر هم مونږ ته معلوم دی. مګر دده او د هغه داشعارو تر منځ ډیر فرق موجود دی نو ښایي چې، دا سړی پرته له هوتك عبدالرحیم څخه بل عبدالرحیم وی او د اخون درویزه په کورنۍ او یا پیروانو کې داخل وی. کلام یې د مخزن له سبك سره اړخ لګوي لکه چې وایي:

دغه هسې ښایسته بشرې شوې توري خاورې
چې په ښایست یې مخې نه و د پسرلی ګلونه
دا د سمند سواره یې پرې یاسته پر زمکه باندې
په ډیر ارمان دګور بندیان شول زلمي ناوې جونه
داد دامان اهو به خلاص نه شي په تیښت له مرګه
نه په پر، ورځنې خلاص شي د هوا مرغونه
دا د دریاب ماهیان به څوله مرګه غریبي هلته
چې په هر لاریې چاپیر شو د قضا جالونه

* * *

**عبدالحلیم:** عبدالحلیم داخونددرویزه د سبك له پیروانو څخه دی، دی سړي هم ډیر نیم عروضي اشعار ویلي دي.

عبدالحلیم دعبدالله زوی او د اخوند درویزه لمسی دی، چې تر زرم هجري کال وروسته یې ژوند کاوه. که څه هم دی اساساً د خپل نیکه په سبك او ډله کې داخل دی، مګر ځینې عروضي اشعار هم لري، چې په دغه لحاظ یې موږ د پښتنو شاعرانو څخه هم ګڼو. د عبدالحلیم دغه لاندې عروضي شعر دنمونې په ډول راوړو:

*چې ځای نلري تنها وي، داکلی جهان یې سراي دی*
*پر هر ځای چې شپه پر راغله، هم هغه سراي دده ځاي دی*
*په مشرق مغرب کې ګرزي، غریب نه وي بې پرواوی*
*په هر لوري چې ودرومي، هغه ملك دده دخدای دی*
*چې څوك نلري بې خدایه، ځای یې نه وي یك تنها وي*
*ته ګدای ورته مه وایه، چې پادشاه دده ګدای دی*
*چې د زړه په سترګو وینی، د راحت طلب ګوینه*
*د عارف راحت بلا کې، تل وایم په هوی وهاي دي*
*دا حلیم هم امیدوار دی ستا و فضل حقانی ته*
*چې حلیم د عارفانو، نیکمردانو خاکپای دی*[۱]

**احمد اخون:** د یوولسمې هجري پیړۍ د پښتو له مسجع نثر لیکونکو څخه و، څو دیني رسالې یې لیکلي دي او د لیکلو سبك یې د اخوند درویزه د پیروانو سبك ته ورته دی.

څو بشپړې رسالی او څو نظمونه یې د عبدالغني کاسي دجونګ په دوهم مخ کې چې په ۱۱۲۴ هـ ق کال کې لیکلي

(۱) د قلمی مخزن څخه، پښتانه شعراء لومړی ټوك د ۱۳۲۰ ش کال دکابل چاپ.

شوی راغلي دي. چې دلته يې د نومونو په راوړلو سره اکتفا کوو: [۱]

۱ – حضرت محمد او ابو جهل کيسه
۲ – شفاعت نامه.
۳ – د بی بی خديجه کيسه
۴ – دحضرت داؤد کيسه.
۵ – د بې نمازانو بيان.
۶ – د ابراهيم خليل الله کيسه.
۷ – د مرګ په باب منظومه.
۸ – د حضرت يوسف کيسه.
۹ – دحضرت رسول (ص) تولد نامه.

**اخونداحمد**: د پښتو د پخوانيو کيسه کښونکو ليکوالو څخه دی، دی لومړی سړی دی چې په پښتو مسجع نثر يې کيسې رانښلولې او زياتې ديني کيسې او روايتونه يې د خپل قلم په څوکه ليکلي او خوندي کړي دي.

ده درې نيم سوه کاله پخوا په پښتو کې خوږې کيسې کښلې، داسې کيسې، چې زياتې يې د ننني لنډې کيسې په کالب کې ځايېږي او ښه ځيرنه پرې کيدای شي.

د ژوی قرباني دده هغه کيسه ده، چې د ابراهيم(ع) له خوا د اسماعيل(ع) د قرباني اوږده کيسه پکې لنډه شوې او ددې کيسې يوه ګوښه يې د مسجع نثر په کالب کې ځای کړې ده، کيسه داسې ده: [۲]

---

(۱) د افغانستان توميالی دريم ټوک د ۱۳۵۶ ش کال د کابل چاپ. عبدالروف بېنوا
(۲) د زيري کالنی. ۱۳۶۰ ش کال اته ويشتم مخ د ژوی قرباني

(واروئ یارانو دا فقیر بنده بیان کاندي له خپلې شرمندګۍ.

مهمانې د لوی بادشاه خوري، یهبوده عقل بې ګوري، چې د نوس [(۱)] او شیطان کاندي بندګۍ.

شپه او ورځ یې د دنیا په حب تیریږي، د دین غم یې پسې شاکړ، د ازل نصیب یې شوی د خوارۍ.

که طلب کړې نن دې وار دی، خو دا روح درسره یار دی، د نیکۍ څښتن رویدار دی، د بدانو تل نصیب د مختورۍ.

د خلیل حکایت واوره، ابراهیم دده نامه وه، ده دخدای په حکم کار کړ، څکه نوم یې وګټلی دا ښه نوم د خلیلۍ.

یوه شپه په خوب اوده و، ناګها آواز پرې وشه چې، نږدې شه خپل خدای ته اې خلیله څو حیات یې پر نړۍ.

چې سبا شه، دا معنی ورته حاصل شوه، چې فاني دنیا حجاب ده .... [(۲)]

دغه خبره هم د یادولو وړ ده، چې د مخزن په نسخه کې ددې سرې شعرونه لیدل شوي دي. د (۱۱۴۴ هـ) په حدودو کې د احمد په نوم مورږ ته کوم بل شاعر معلوم نه دی. نو څکه دی د اخوند دروزیزه له پیروانو او شاګردانو څخه. د دوولسمې پیړۍ د اولې برخې شاعر بولو. دی د جنت په بیان کې د قصیدې په رنګه یواوږد شعر لري، چې یو څو بیتونه څني دلته را اخلو:

---

(۱) نوس = په نفس

(۲) د ۱۳۶۰ ش کالو د زیري کالنی ۳۰ - ۳۱، مخونه د پښتو ادب تاریخ، (پوهاند رشتین).

جنت يې جوړ کړ په زيړ ګلونه
چې په کې ناستې د جنت جونه
کنګرې يې روغې کړې د سرو زرو
شهد و شکر دي په کې رودونه
زلمي به واړه ديرش کلن وي
جونې به کمې تر شل کلونه
جونه به ناستې پر زليچو وي
څنګونه اينبې پر بالښتونه
ته به زړې شې نه به بدرنګه
هسې به تل وې د جنت جونه
جنت ګلزار دی جونه بلبلې
زلمي توتيان دي پر چنارونه
احمد زاړه ديدار يې غواړه
ديدار بهتر دی تر جنتونه

**شيرمحمد**: دده اشعار د مخزن د يوې نسخې په اخر کې راغلي دي، دی د ننګرهار له خوا يو طالب العلم او د اخونددرويزه د اولادې له شاګردانو څخه و، چې پس له (۱۱۰۰هـ) کاله ژوندی او د ديني علومو په لوست او تحصيل بوخت و.

ملا شير محمد ډير ديني او اخلاقي اشعار ويلي دي، چې اوس يې موږ ته لږ رارسيدلي دي.

دده سوانح او د ژوندون وقایع نور نه دي څرګند. له دې قطعې څخه یې شاعرانه تخیل اودژوندون ډول ښه ښکاریږي.[۱]

یا ګوښه وای له سریو
پر آسمان باندې سحاب وای
یاعاشق وای پر مهریو
یامعشوق لکه مهتاب وای
چې نه دا شوای نه هغه شوای
شیرمحمد کشکې تراب وای

* * *

د شیرمحمد له دیني او اخلاقي غزلو څخه دا مورړ ته رارسیدلي دي.

یو بیان به درته وایم مختصر
ته یې یاد لره دایم د زړه په سر
خدای او مرګ همیشه یاد لره مومنه
چې تر دانه نصیحت نشته بهتر
که ته دا وظیفه ونیسې محکمه
په خپل زړه کې به یې بیا مومې اثر
بل خوراك یو شان حلال کوه عاقله
له کلي حرامو ونیسه حذر
له دروغه له غیبته ځان ننګاه کړه
چې غیبت دی تر زنا دی لابتر

(۱) پښتانه شعراء، لومړی ټوك، پوهاند عبدالحی حبیبي، پښتو ټولنه، کابل، ۱۳۲۰.

د مومن ازارول هیڅکله مه کړه
چې مؤمن ازاروي ځای یې سقر
پر مخلوق باندې زړه سوی کوه مؤمنه
هسې نه چې په خوله خوړ په زړه یې سخر
ظالمي او ناحقي پر هیچا مکړه
د ظالمو به خدای واړوي دفتر
د استاد د مور او پلار خدمت دایم کړه
هم اورته دې خدمت کا د شوهر
تل د خدای پر نعمتونو شکر وایه
و بلاوته یې صبر کړه سپر
څو ژوندی یې ته طالب د علم اوسه
په طلب د علم کرزه ور په ور
شیرمحمده دامنګیر اوسه د علم
چې دا علم ستا رهبر دی مقرر

**جان محمد**: جان محمد د پېښور او ننګرهار د خواد پښتو شاعرانو د منځنۍ ډلې وروستی سړی دی چې د احمدشاه بابا په دوره کې ژوندی و او د (۱۱۵۰ هـ) کال په حدودو کې یې حیات درلود.

د پوهاند رښتین په قول، دی د اخوند درویزه د اولادې له پیروانو څخه و. د جان محمد دیني اشعار ډېر دي، یو کتاب یې نورنامه نومیږي. داسې ښکاري چې جان محمد د خپل عصر او زمان عالم و. په سیرت نبوي کې یې ښه معلومات درلوده، دده اشعار هم دغسې دیني او اخلاقي رنګ لري. د جان محمد ډېر اشعار موږ ته نه دي رارسیدلي. دده د شعر

دیوان هم چا نه دی لیدلی. له عشقي اشعارو څخه یې یوازې لاندینی بدله د یادولو وړ ده:

پـد لښکـر د بیلتـانه راتـه ولاړ شـو
پـر دغـه زمـا د زړه شـهر ویجـاړ شـو
د وصـال لـه ډیـره قـدره دې خـبر کـړم
چې مې زړه ستا پر بیلتون باندې لتاړ شو
د وصـال بهـار مې توبـه شـو پـر زمکـه
چې را پیښ د جدایي تـود اهـار شـو
هیڅ اخلاص مې بې لباسه تري بیا نه مونـد
یارمې تـک د بـنګالی او یـا کـرار شـو
چې مې تـل د زړګي غوښې خوري عالمـه
دخیل یـار بیلتـون همیش راتـه ولاړ شـو
د بیلتون پـه سـخر ولـې ویشـت اشـنایه
جـان محمـد چې سینه ماتـه لـه تالاړ شـو[1]

**نورمحمدتوخی غلجی:** نورمحمد، چې په غلجی مشهور دی، په غلجو کې توخی دی او د ملا یارمحمد زوی دی، دی د کندهار په پنجوایی کې اوسیده مروجه شرعي علوم یې ویلي وو. په عمر پوخ و، چې د کندهار په ښار کې یې دمیرخان ښځو او کوچنیانو ته د دیني علومو تدریس کولو.

نورمحمد اشعار هم لري. یوکتاب یې د (نافع المسلمین) په نوم لیکلی دی او په دې کتاب کې یې شرعیه احکام بیان

(۱) پښتانه شعراء لومړی ټوک. د اخوند درویزه له مخزن نه. نقل شو، چې په ۱۱۶۷ هـ په ملتان کې لیکل شوی دی.

کړې دي. دا کتاب یې د شاه حسین پادشاه په نوم اهداء کړی او له معتبرو د فقې او اخلاقو کتابونو څخه یې د کتاب په لیکولو کې کار اخیستی دی.

ملا نورمحمد غلجی توخی، د ژوند په وروستیو کړیو کې د کندهار په پنجوایی کې د مشکوه شریف، بخاري، هدایه او کنزاو محمدیه طریقه او داسې نورو مروجو کتابونو په تدریس بوخت و. دانظم دده دی: [۱]

*ته مؤمن ژوندی په دین یې زما یاره*
*ته ژړا فریاد کوه په څو کوکاره*
*استغفار توبه کوه د ځان د پاره*
*ته هم ځان ساته پناه غواړه له ناره*
*بیداري کړه په سهار کې زما دلداره*
*زه و تاته یوویی کړم زما ورورره*
*په سهار بیداري وکړه آخر وګوره*
*یا به تاسې په جنان کې یا په اوره*
*چې ستا رنګ حال به په رنګه سی له ګوره*
*بیداري کړه په سهار کې زما دلداره*
*په هر وقت له مسلمانه دلداري کړه*
*په دریمه شپه کې ډیره بیداري کړه*
*هم پر خپل صورت وژاړه هم زاري کړه*
*داخپل ځان لکه حباب ترې بیزاري کړه*

(۱) پټه خزانه د ۱۳۵۶ ش کال، خلورم چاپ د کابل پوهنتون ادبیاتو پوهنځی. محمد هوتک

بیداري کړه په سهار کې زما دلداره
نه دروغ الابلا مکړه په دنیا کې
دادې زیان دی زما جانه په عقبا کې
ستا ډیر سود دی درته وایم په ژړا کې
له ګناهه خلاصی ډیر دی په دعا کې
بیداري کړه په سهار کې زما دلداره
نه دخدای له حکمه مه غړوه غاړه
نیک اخلاق کړه ته طلب او نبه خوی واړه
تضرع کړه خپل صورت کړ وچه ناړه
ته له ختمو یې جوړ شوی تن ویجاړه
بیداري کړه په سهار کې زما دلداره
ته امید کړه د رحمت ته خما جانه
د رحمت دروازه خلاصه ده جانانه
هر سهار رحمت نازل شي له آسمانه
مغفرت په سهار غواړه له رحمانه
بیداري کړه په سهار کې زما دلداره

د نور محمد غلجي د نافع المسلمین خطي نسخه دافغانستان په ملي ارشیف کې خوندي ده، دا نسخه د پاي له خوا نیمګړې ده، ددې کتاب متن زلمی هیواد مل د همدې نسخې له مخې چاپ ته اماده کړی دی، او په ۱۳۶۳ هـ ش کال د هیوادمل له مقدمې او تعالیقاتو سره د کلتور د دولتي کمیټې له خوا چاپ شوی دی.

نورمحمد غلجي ددې نافع المسلمین په لومړیو برخو کې د اخوند درویزه دمخزن یادونه کړې ده، نافع المسلمین د اخوند درویزه د مخزن په پیروي لیکل شوی دی.(۱)

**حسین:**

حسین د یوولسمې هجري پېړۍ په وروستنیو او د دوولسمې هجري پېړۍ په لومړنیو وختو کې یو نامتو ادبي شخص تیر شوی دی. ده د (خلاصة الاسلام) په نوم یو کتاب د پښتو په مسجع نثر ژباړلی دی. او د اخوند درویزه ننګرهاری (۹۴۰-۱۰۴۸ هـ،ق) د ادبي مکتب له پیروانو څخه شمیرل کیږي.(۲)

دده د خلاصة الاسلام یوه خطي نسخه د افغانستان په ملي ارشیف کې خوندي ده، بله نسخه يې دلننیګراد د ختیځ پوهنې په انستیتوت کې ده، او دریمه يې د ښاغلي بریش په کتابخانه کې خوندي ده.(۳)

د حسین خلاصة الاسلام پوهاند صدیق الله رښتین دوړمې مجلې په یوه ګڼه کې مفصله معرفي کړې ده،ده هلته ویلي دي چې اخوندحسین داخوندرویزه له پیروانوڅخه دی.

حسین دا خلاصة الاسلام د لطف الله باخرزي له اثارو څخه ترجمه کړی دی.

---

(۱) نافع المسلمین،د نورمحمد غلجي، د زلمی هیوادمل په زیار د ۱۳۶۳ هـ ش کال چاپ.

(۲) فرهنګ زبان و ادبیات پښتو ۱۳۲ مخ، د زلمی هیوادمل تالیف، د ۱۳۵۶ ش کال چاپ، د ښوونې او روزنې وزارت د تالیف او ترجمې ریاست له خوا.

(۳) فرهنګ زبان و ادبیات پښتو، دوهم ټوک، د ۱۳۶۵ هـ ش کال، زلمی هیوادمل، و طبع او نشر دولتی کمیټه

## میرحسین هراتی:

دا سړی هم د اخوند درویزه د سبك له پیروانو او ددغه ادبي مکتب له شاګردانو څخه ګڼل کیدای شي، میرحسین هراتي په پښتوژبه د نافع المسلمین په نامه یو کتاب کښلی دی. ددې کتاب یوه خطي نسخه د افغانستان د علوموا کاډمې په خطي کتابونو کې محفوظ ده. ددې کتاب د لیکنې سبك هم دمخزن الاسلام په څیر دی.

## ددې فصل نتیجه:

ګرانو لوستونکو ته به اوس څرګنده شوی وي چې اخونددرویزه د بایزید روښان لوی مسلکي مخالف و. په همدغه وجه یې خپل اثار د بایزید روښان پر ضد لیکلي دي. خو سره له هغه دده د لیکنو سبك نه یوازې د روښان تر تاثیر لاندې دی بلکې اخوند درویزه د روښان د ادبي مستقل مکتب د سبك شاګرد او د فورم او شکل له مخې د روښاني ادب پیرو دی، ځکه نو اخوند درویزه د (مخزن الاسلام) کتاب، د بایزید روښان مصنفه کتاب ((خیرالبیان)) په مقابل کې لیکلی دی او د روښان ((فخر الطالبین)) او (مقصود المؤمنین) د کتابونو ځواب یې په ((ارشاد الطالبین)) او ((ارشاد المریدین)) ورکړی دی او ((تذکره الابرار و الاشرار)) د بایزید د ((حالنامې)) په مقابل کې دی.

د اخوند درویزه په ډله کې: عبدالکریم یا کریمداد دده زوی، عبدالحلیم یې لمسی، مصطفی محمد یې کړوسی، ملا اصغر یې ورور، عبدالسلام یې شاګرد، او همدارنګه عمرخان، میرخان، شیرمحمد، رحیمداد، عبدالرحیم، احمد، اخوند قاسم او بابوجان دده د سبك پیروان او د پښتو ادب لیکوال او

شاعران دي. ددې ډلې آثار هم دیني، مذهبي مضمون لري په دې فرق چې په روښاني آثارو کې ژور تصوفي، فلسفي فکر او عرفاني حکمت او انساني لوړ اخلاق ډیر قوي دي چې د خدای او کائیناتو او انسان د ارتباط په مسائلو پورې اړه لري، او د بشري نړۍ د پاره د مینې، محبت، پیرزوینې، یووالي، یورازوالي، وروروليی پکښې ځلیږي او برسیره پر دغو د دوی په آثاروکې، د وحده الشهود او وحده الوجود باریك مسایل بریښي او ځلیږي. مګر د درویزه او د درویزه د پیروانو اثار په پښتو فقهي شرعي مسائل دي، چې که پخپل اصلي رنګ وړاندې شوي واي او د پښتو ژبې اصالت او سوچه توب یې پخپلو لیکنو کې رعایت کړي واي او د ژبې بیان یې عام فهم سلیس، روان، فصیح او د اغلاق، ابهام، ایهام او وحشویاتو او د مترادفاتو څخه خلاص او مبراواي اوږدې اوږدې جملې او ځینې لنډې لنډې جملې پکې مستعمل نه واي او د مسجع التزام او د قافیې دومره رعایت او تاکید پکې نه واي شوی او تر دې اندازې تکلفي، فني او ادبي صنعت کې نه واي درلودلای چې نثر یې نظم ته نږدې کړی دی او هم یې عربي او پارسي لغات او کلمات د پښتو سوچه محاورې سره نه واي ګډه کړي او لفاظي یې، نه واي کړې او تر ټولو مهمه خبره دا چې که د اسلام د مقدس شریعت د سپیڅلو احکامو تشریحات یې روښان او روښانیانوته د تکفیرونو، توهینونواو دوی پسې د افتراګانو او اتهاموتو په ناوړو الفاظونه واي کړي، نو ویلای شو چې د اخوند درویزه او دده د پیروانو اثارو به د مسلمانانو د پاره د شرعي احکامو د زده کړې په برخه ډیر په زړه پورې درسي کتابونه ګرځیدلي واي.

د درویزه او دده د پیروانو د پښتو د آثارو په ډیرو برخو کې موضوعي او جعلي روایات هم ګډ شوي دي، چې په همدغه وجه د دغو آثارو علمي او دیني حیثیت ته یې پوره صدمه رسولې ده، په تیره بیا دغه رنګه نیمګړتیاوي پخپله د اخوند درویزه په آثارو کې په زیاته اندازه لیدل کیږي چې هر ومرو او بالضرور سیوري یې ددې ډلې په نورو راتلونکو لیکوالو هم پریوتې دی. د درویزه د آثارو د لوستلو څخه اوچت څرګندیږي چې دده خپل اکثر آثار علی الخصوص (مخزن) او ((تذکره الابرار و الاشرار)) د روښان او روښانیانو پر ضد، د یو منفي پروپاګند په شکل د لوستونکو د غولولو او د روښانیانو د خلکو د اړولو د پاره لیکلي دي، نه د شریعت د واقعي احکامو د واقعي تبلیغ او تنویر د پاره.

لنډه داچې د درویزه د ډلې د آثارو ادبي سبك د روښانیانو د ادبي سبك او آثارو د عکس العمل په توګه منځ ته راغلي دی چې د فورم او شکل له مخه د روښاني ادب په پیروي دي.



# اووم فصل

## د بايزيد روښان او اخوند درويزه
## د پښتو فني نثر مقايسوي کتنه

د پښتو ادب دوهمه دوره، له ۹۰۰ هـ څخه تر ۱۱۰۰ هجري پورې (د بابر پاچا او د هغه د اولادې زمانه)
مونږ د پښتو ادب داولې دورې څخه دلته صرف نظر کوو او د پښتو ادب د اولې دورې ليکوال او د دوي ادبي سبک څکه نه څيړو، چې بايزيد روښان او دده د ادبي سبک پيروان. او په تيره بيا د اخوند دوريزه او دده پيروان، د پښتو ادب په دوهمه دوره پورې ارتباط لري او هم له دې وجهې، چې اخونددرويزه په ۹۴۰ هجري کال کې زيږيدلى او وروسته بيا ده په نثر ليکلو پيل او په دې لياره کې د بايزيد روښان د ادبي

سبك پیرو، او د روښان د (خیرالبیان) کتاب په مقابل کې خپل (دمخزن) کتاب د روښان دخیرالبیان کتاب په سبك لیکلی دی.

څرنګه چې د پښتو ادب په دوهمه دوره کې (له ۹۰۰ هـ څخه تر ۱۱۰۰ هـ) د پښتو پیاوړی لیکوال او شاعران تیر شویدي، چې د پښتو ادب د دوهمې دورې او د پښتو د نثر د ادبي سبك د مستقل مکتب علمبردار، بایزید روښان دی، چې اخوند درویزه (په پښتو ادب کې) د ده د ادبي سبك پیرو او شاګرد بلل کیږي. نو لازم ګڼو لومړي د بایزید روښان ادبی سبك پښتو نثر وښیو او د روښان د خیرالبیان کتاب نمونې، د اخوند درویزه دمخزن کتاب د نمونو سره په مقایسوي توګه ولیکو وروسته به د اخوند درویزه آثار وڅیړو.

د پښتو د ادب په اوله دوره کې د (۶۰۰ هـ څخه تر ۱۱۰۰هجري) د غوریانو او لودیانو د عصر، د نثر د وره، د سلیمان ماکو په مکتب یادیږي. دا هغه دوره ده، چې د پښتو نثر پر طبیعي لاره روان و، او هم ساده اوغیر مصنوع ګڼل کیږي، چې (مرسل نثر) ورته وایي په دې معنی چې د مقصد د افادې په منظور، ددې دورې لیکوال لنډې لنډې د محاورې جملې په نثر کې راوړي او استعمالوي یې. د دوی د جملو په انسجام او ترکیباتو کې تکلف نه لیدل کیږي. په اوچت او ساده الفاظو سره، خپل مطلب بیانوي او ددوی په الفاظو کې کوم لفظی تعقیدات او بیچلتیاوې نه لیدل کیږي او دسجع او د قافیې التزام د دوی د جملو په پای کې نشته.

د (سلیمان ماکو) دغه ادبي مکتب، د پښتو د نثر په تاریخ کې لومړنی مکشوف حرکت دی، ځکه چې تر دغه دمخه یې کوم اثر تر اوسه لاس ته نه دی راغلی، نو اوس اوس مونږ

دغه د پښتو لومړنی دنثر ادبي مکتب ګڼواوتر دې وروسته د (۹۰۰ هـ) په حدودو کې د پښتو نثر تحول کوي او يو فني او مصنوعي رنګ مومي، چې دغه ته مونږ (فنی نثر) وايو او ددې سبك دموسس په نامه يې د پيرروښان مکتب بولو.

د پورتني څيړنې او ليکنې په ارتباط، لوستونکو ته ښايي دا ډول پوښتنه پيدا سی، چې فني نثر څنګه نثر دی او ولې پيدا شو؟ نو د دوی د هسې پوښتنې په ځواب کې په مفصله توګه ويلای شو، چې يو کلام او يوه وينا (که نظم وي که نثر) تل دوې برخې لري او له دوو عنصرو څخه جوړيږي. چې يو لفظ او بل يې معنا ده.

د ژبو په طبيعي ويناو کې تل معنا په ساده او بسيطو الفاظو ادا کيږي او دې ته مرسل او طبيعي نثر وايو. يعنې په وينا کې تل د ويونکې يا ليکونکې دا مقصد وي، چې مافی الضمير او معنا، په الفاظو سره تصوير کړي او ددغو الفاظو تزئين او د ډول ته يې توجه نه وي، دا نو مونږ د ژبې اصلی او طبيعي وينا، ګڼو، او په ټولو ژبو کې هم دغسې وينا، دمخه ده هر څوك په ساده او ناپيچلو الفاظو، خپله معنا اداکوي. خو که دمعنا په اداکولو کې الفاظو ته هم ډيره توجه وشی، يعنې د الفاظو راوړلو او اسلوب او ښکلا د معنا له جماله سره هم ساري وي، دی ته يو (فنی نثر) وايي.

په ژبوکې چې لومړی پلانثر ليکنه رواج مومي د ليکوال هدف دا وي، چې معنا ادا او ښه ښکاره کړي. او د الفاظو ډول ته يې ډير نه ګوري، بلکې د معنا مختلف انواع او اقسام په ساده او سپيڅلې الفاظو تصوير کوي، مګر هر څومره چې د نثر ليکل ډيريږي، ورو، ورو او په تدريج د لفظ تناسب ورسره

پخیږي او په وصفي او نقلي لیکنو کې. لیکونکې دې ته میل پیدا کوي. چې الفاظ هم مرتب او سره او ډلي او ښکلي وي او د (صنعت) په ګاڼه ښایسته شوي وي.

دغه کیفیت ورو، ورو ډیریږي. لکه معنا چې تل د ځان له پاره الفاظ مومي او د ځان تابع کوي یې. دغسې هم چې لفظ ته توجه ډیره شي. نو کله کله لفظ هسې غلبه ومومي چې (معنا) هم په ځان پسې بیایي.

په (فني نثر) کې تل لیکوال داسې کوي چې خپل الفاظ په او ډلې او مرتب ډول هسې یو له بله سره مناسب ولیکي. چې سجع ولري او د (فني نثر) اصطلاح هم له عربي ادبه راغلې ده.

عربو چې کوم نثر د جاهلیت په دوره کې درلود، او بیا د اسلام په ابتداء کې د دوی نثر ساده او طبیعي و. دوی له مسجعاتو څخه ځانونه ژغورل او نثر یې ساده او مرسل و. حشو او مترادفات یې نه درلودل، لنډې لنډې خبرې به یې کولې او د وینا اسلوب یې پر داسې ادبي اساس بنا وو، چې ډیر مقصدونه په لږو خبرو کې ځای کا. تو ځکه یې ویل: خیر الکلام ما قل ودل وایي چې عمار یاسر یوه ورځ ډیره لنډه وینا وکړه، چا ورته وویل: که دې وینا اوږده کړې وای ښه به و. عمار وویل: ((امرنا رسول الله صلعم باطالته الصلوه و قصر الخطبه.))

له دغو ټولو روایاتو څخه ښکاري چې د اسلام په ابتداکې د نثر وینا ساده او لنډه او بې له حشویاتو او متراد فاتو وه. خو کله، چې د عربو لیکوال په دوهمه هجري پیړۍ کې د نورو ملتو په کتابو او لیکنو مصروف شول، او د هند. فارس او د یونان کتابونه یې وکتل. نو ورو ورو د عربي په نثر کې له ساده ګۍ څخه د تکلف. لفاظي او صنعت خواته ولاړل. یعنې

معاني يې د الفاظو تابع کړل او الفاظو پر معنا او مقاصدو غلبه ومونده. ليکوالو کوښښ کاوه، چې دعربو شاعرانو، له اشعارو څخه ځينې سجعي او اوږدلې الفاظ پخپلو نثرو کې راوړي. يو عربي نقاد د سعد بن حميد په خصوص کې وايي: ((که دده وينا وې خپلو خپلوانو او اصلي مرجع ته ولاړې شي. نو به څه نه شي. ورپاتې.))

يعني ده. پخپلو ويناوو کې د نورو شاعرانو مسجع کلمات دومره ګډ کړي دي، چې خپل هيڅ نه لري.

په دې ډول د مسجع او تکرار او موازني اثر، د عربو پرنثر لويدلي دی او په دريمه هجري پيړۍ کې کله کله مسجع کلمات او مترادف الفاظ دعربو په نثرکې ليدل کيږي او په پوره ډول د هجرت څلورمه پيړۍ د فني، يامسجع نثر، او ((ادبي صنعت)) وخت بلل کيږي.

برهان وايي: - دعربو په نثرکې د سجع صنعت په څلورمه پيړۍکې، پوره رواج شو او ددې عصر مشهور ليکوال او د فني نثر يو معروف مؤسس عبدالحميد بن يحيى دی. چې د اموي آخر خليفه مروان حمار معاصر و د (۱۳۰ هـ) حدود.

پوهاندحبيبي پخپل اثر (د پښتو ادبياتو تاريخ) په دوهم ټوك کې ليکي: ((چې محققانو پلټنه کړيده، چې د اريائيانو قديم کتابونه لکه ويدااو اوستااو بيا د پهلوي کتب اکثر په يو صنعتي رنګ ليکل شوي وواو د عبدالحميد کاتب مشهور فني مکتب هم په عربي ادب کي تر اريائي اثر لاندې جوړ شوي و.))

جهشياري وايي. چې هشام بن عبدالملك خپل ليکوال روح بن زنباع داسې ستايه. چې دده ليك پارسي اسلوب لري.

ابو هلال عسکري په ښکاره کلام وایي، د عبدالحمید کاتب ادبي مکتب د پهلوي مکتب اغیزي منلی دی.
ځکه چې دغه فني رنګ په اریایي پخوانې نثر کې هم موجود و. نو هغه وخت، چې پارسي نثر د سامانیانو او غزنویانو په دورو کې دخپل سادګۍ دوره طی کړه، نو په ډیره آسانۍ یې فني ډول قبول کړ، که څه هم د پارسي لومړي لیکوال لکه بلعمي، بیهقي او نور په فني نثر بلد نه وو او لکه دمخه چې مو وویل د تولو ژبو په ډول د دوی نثر ساده او طبیعي او هم سجعو او د اریایي ادب او دعربي د ((فني نثر)) په تقلید، پارسي لیکوالو په نثر لیکنه کې د سجع او موزون اهنګ او مسجع ته میل وکړ، نو په دغو وختونو کې خواجه عبدالله انصاري ډیر مسجع مناجاتو نه او ملفوظات په هروي لهجه وویل او بیا قاضي حمیدالدین بلخي د بدیع الزمان او حریري د مقاماتو پیروي په مصنوع نثر وکړه. دغسې نصرالله غزنوي وزیر کلیله و دمنه ولیکله او نورو معروفو لیکوالو ((فني نثر)) ته ډیره ترقي ورکړه او ددې (ادبي مکتب) پیروان په پارسي ادب کې تر (۵۰۰ هـ) راوروسته زښت ډیر دي او ډیر تاریخي، علمي اوادبي کتابونه یې په دغه ډول کښل شوي دي.
د غزنویانو له عصره عربي اسلامي علومو، په منځنی ایشیا کې یو ښکاره نهضت کړی دی. چې خراسان یه هم ددغه حرکت، مرکز و. شاوخوا ته هم په بخارا، پارس او هند کې د عربي علومو مدارس زیات و. مګر مرو، هرات، رخج، غزنه، بامیان، تخارستان، بلخ، جوزجان او د خراسان نورې ځمکې د مدرسو، او کتابخانو څخه ډکې وې او ډیر مشهور علماو، په دغو ښارو کې اوسیدل، چې دوی اسلامي ثقافت او عربي علوم

لکه تفسیر، حدیث، فقه، ادبیات او فلسفه په عربي ژبه ځپرول چې بوریحان، بوعلي سینا، فخر رازي، سعدلفتاذاني او جامي ددغه محفل څراغان دي.

مخصوصاً له ۶۰۰ هجري را په دې خوا، چې دوه درې قرنه پښتانه دخراسان او پښتونخوا په ښارو او راغوکې خپاره شول،دوی له هغو خلکو سره تماس وموندکوم چې په پارسي او عربي کې به ادیبان اوعالمان وو،له هراته، تر پیښوره،د پښتنو مهاجرتونه او د ښاریتوب یعنې مدني حرکات شروع شول.

په دغو وختونو کې طبعاً د عربي او پارسي ژبې ادبیات او لیك دود او طرز، دوی ولید. او پوهان او لیکوال یې له خپلو ګاونډیو پوهانو سره، چې په پارسي او عربي ژبو به یې څه لیکل محشور شول.

دې امتزاج او ګډون، د دوی په ټولو اجتماعي حالاتو اثر وکړ. او د ګاونډیو خلکو له ثقافت او پوهنې سره اشنا شول.

د غزنوي لویه شاهنشاهي، د غوریانو ارت سلطنت او د تیموریانو علم او صنعت پالنه، دوی پخپله پښتونخوا کې ولیدل. د پښتونخوا لمرخاته هم د اباسین پر هاخوا د خلجیانو (غلجیانو) پښتنو او لودیانو او سوریانو سلطنتونه وو، چې دوی ټول پښتانه وو او پښتنو له دوي سره تګ او راتګ درلود، او د هندوستان لویه ځمکه د دوی جولانګاه وه. هلته هم اسلامي اوعربي علومو اوپارسي ژبې په هندکې نشوونما وکړه.

دغه ټول طبیعي عوامل وو، چې د پښتنو پر ثقافتي ژوندون یې اثر کاوه.ځکه چې په دغو دورو کې هم په عربي، هم په پارسي ژبوکې (فني نثر) ډیر رواج درلود، نو پښتنو هم غوښتل چې پخپله ژبه کې د (فني نثر) په ډول کتابونه او اثارو

مومي او هغه خوږ او روان نثر چې د ۶۰۰ هجري په حدودو کې موجود و. د عربي او پارسي ژبې د (فني نثر) په ډول کاندي.
اساساً دا حرکت يو طبيعي او د ژبې له پاره ښه او معقول حرکت نه و، ځکه د پارسي ژبې پخوانی روان او سليس نثر هم په دغه فني حرکت کې کرغېړن شوی و. د بيهقي او منهج السراج خواږه او روان نثرونه. چې لکه قند داسې خوږ وو. او د (۴۰۰ - ۶۰۰ هـ) د پارسي نثر ښې نمونې دي. يا د سعدي شيرازي د ((گلستان)) ښکلی نثر په هم هغه شيراز کې د تاريخ (۷۰۲ هـ) په کرغېړن او درانه او مکروه نثر بدل شو. او په هند کې تر (۶۰۰ هـ) راوروسته. منهاج سراج په ډهلي کې طبقات ناصري غوندي خوږ او روڼ او سليس نثر وکيښ. خو هم په دغه وخت کې حسن نظامي خپل تاج الماثر (۶۰۲ هـ) او بيا خواجه محمود گاوان (۸۱۳ - ۸۸۶ هـ) د بهمني شاهانو وزير او منشي رياض الانشاء په داسې ناوړه او ثقيله انشاء په پارسې وليکل، چې ويل يې گران دي.
پښتو ژبه د هند او ايران ترمنځ محصوره وه او له هرې خوا ادبې حرکاتو اغېزه پرکوله. تر (۶۱۲ هـ) پورې چې سليمان ماکو خپله تذکره ليکله د پښتو نثر، لکه د پارسي ژبې پخوانی نثر خوږ، روان او سليس و. مگر وروسته چې ((فني نثر)) پر پارسي په ايران او هند کې مستولي شو. نود پښتنو نثر هم تر دغه اثر لاندې راغی او په پښتونخوا کې بايزيد انصاري يعني (پير روښان) د پښتو ژبې (فني نثر) علم پورته کړ.
ددې لپاره چې د (مرسل نثر) او (د فني نثر) فرق اوتوپير ښاغلو لوستونکو ته ښه ځرگند شوی وي، د پارسي ژبې د روان نثر او بيا فني ثقيل نثر نمونې په لاندې ډول راوړو:

شیراز: د شیخ سعدی روان نثر (۶۵۶ هـ): بر بالین تربت یحیی پیغامبر علیه السلام معتکف بودم درجامع دمشق که یکی از ملوك عرب که به بی انصافی منسوب بود اتفاقاً بزیارت امد و نماز و دعاکرد و حاجت خواست، انگاه مرا گفت: از انجا که همت درویشانست وصدق معاملت ایشان خاطري من همراه من کنید که از دشمن صعب اندیشناکم گفتمش: بر رعیت ضعیف رحمت کن تااز دشمن قوی زحمت نه بینی.

شیراز: دو صاف عبدالله شیرازی ثقیل نثر (۷۰۲ هـ): غازان خواست که تتمیم اساس عدلی را که ممهد فرموده و ارشاد طریقه تقویت اسلام که مدت سلطنت خود را مصروف ان ساخته بود اینده گان را نصیحتی و تذکری واجب دارد و هدیت وصیتی ارزانی فرمایند فرمود: ما را محقق است بنور یقین و دیدهء حقیقت بین که از این مرحلهء فانی بمنزل باقی و مصاحبت عورعین نقل خواهم کرد و از این غار مردم خوار بجوار ملك جبار پیوست همگي همت و قصوای امنیت ان بوده که چند روزی که مقالید ملك مجازی در دست ما نهاده اند و حوالت تمنیت عالمیان بما فرموده هر چه نه صفت لفیفت و عدل داشته باشدکه نظام عالم بی این دود عامه قایم نیست درحوالی خاطر راه ندهیم.

## د پښتونخوا لمرخاته ته په هند کې:

دهلي: د منهاج سراج روان نثر (۶۵۸ هـ): بدانکه چون امیرالمؤمنین مامون به مروامد و کفایت و شهامت پسران اسد سامان بدید. در باب ایشان عاطفت وافر فرمود وایشانرا بزرگ گردانید. و درجهء ایشان بلند کرد، و چون امیرالمؤمنین مامون،مراجعت فرمود، غسان بن عباد را امیری خراسان

داد. بلاد خراسان از ماوراءالنهر با مارت او اضافت کرد غسان بن عباد هر يك را از اولاد ...د اميري ولايت داد، و شهرها به ايشان تسليم کرد.

جنوبي هند: دمحمود گاوان مغلق نثر مولانا جامي ته (۸۸۰ هـ) حدود.
اين مکتوب محبت سطر و ملفوظ اخلاص مصدر از دارالحرب سنگيسر محررو مقرر گشت همت قضا از خورشيد نظر رقيق اين سفر گردانند. تا اين اراضي که از زمان ماضي الى هذالعهد به کواکب هدايت مناقب اهل اسلام منور نگشته است و ارتفاع قلاع فلك شکوه و احقاع ارباع بيشه و کوهش مسير اقدام هم اعاظم سلاطين و مهر مواکب کواکب ائين باد شاهان دين نيامده ... با لَيس وجوه مسخر گردد...

داوي د پښتونخوا په شرق او غرب کې د پارسي ژبې د (فني نثر) نمونې او دا ځينې ښکاري، چې د (۸۰۰ څخه تر ۹۰۰ هـ) پورې د پارسي نثر څنګه مغلق او درونډ شوي دی او دا ايجاز پر ځای اطناب. د سلاست پر ځای، اغلاق، د سادګۍ او وصاحت پر ځاي ثقل او تکلف په نثر کې ليدل کيږي.

پر پښتو ژبه او ادب هم دغه ادبي حرکت اثر وکړ، تر ((۹۰۰هـ)) وروسته چې کوم منثور آثار زمونږ لاس ته راغلي دي، د سليمان ماکو له نثره سره ډير تفاوت لري او داسې ځينې څرګندېږي، چې د پښتو پخواني نثر، ساده، بسيط، واضح، خوږ او څرګند و. مګر وروسته چې دهند او ايران فني نثرونه خلکو وليدل نو په پښتو کې هم يو راز درونډ او اوږد او مکروه نثر، شروع شو، چې اسجاع او مترادفات او اوږدې اوږدې جملې يې درلودې او هغه پخوانۍ وضاحت او ساده ګی او حلاوت يې بايلود.

دا فني نثر چې د ژبې د بیان ډول یې بل راز کړ، دریې لپاره اساساً مفید نه و، مګر ډیر منثور آثار او کتب یې په پښتو کې موجود کړل.له دې جهته نوغنیمت هم دې او مونږ ددې ((ادبي مکتب)) استادانو او شاګردانو ته په ښه سترګه ګورو، ځکه که دوی څه نه وای لیکلي، نو به اوس مونږ د پښتو له ډیرو تاریخي او دیني آثارو څخه محروم وو.

د فني نثر اغلاق او پچیدګی او عدم وضاحت پر پښتو نثر داسې اثر کړی دی، چې قطعاً له مخکې نثره سره نه شي تطبیق کیدای، پخوانی نثر، ساده او روان او د ژبې له محاوري سره سم و، مګر فني نثر، مغلق شو. جملي یې اوږدې شوي، او دجملو په آخر کې د سجع التزام وشو او د لیکوالو سره دا فکر و چې نثر د نظم خواته نږدې کړي بلکه اکثر و لیکوالو خپل نثرونه، نظم هم بلل.

نو اخوند درویزه ځکه لیکي، چې روښان په پښتو ژبه شعرونه جوړ کړل او ما هم دده په جواب کې د مخزن اسلام شعرونه وویل.

حال دا چې نه د (خیرالبیان) د عروضي بحورو او اوزانو سره سم موزون، مقفی او مردف شعر دی او نه (مخزن) بلکې دا دواړه کتابونه یو راز مسجع او مغلق نثر دی.

له لاندې نمونوڅخه تاسې د پخوانی نثر او د پیرروښان او د اخوند درویزه د نثر فرق او تفاوت، ښه معلوملای شي

۱ - د سلیمان ماکو نثر (۶۱۲ هـ) نقل هسې کاندې یارانو چې په روزګار د شیخ بیټني کې دده ورور، چې سړبن نومید. او پر شیخ هم خورا ګران و. سړبن نه ردلود زامن. اوهر کله به یې ویل خپل ورورته. بیټني خپل ځوی اسماعیل ورکاوه

اولوی سو ،د سړين په کاله خداي مهربان داسماعيل په برکت سړين
ته نصيب کړه دوني زامن چې، تروس تير شو ګڼون د هغو.

د پير روښان نثر ( ۹۵۰ هـ): هادي ويلي دي رحمت دخداي
په ده دا کلام هر چې چارکه د نوس په هوس او په نغوته د
شيطان، تروبنئی ګمراه کړم لکه مې ګمره اکه ادم عليه اسلام،
و عصبی ادم ربه فغوي بيان نه دی په قرآن

د اخوند درويزه نثر (۱۰۰۰هـ). امام عمر نسفي هسي
ويلي مبرهن دي. چې صوفيان د حق دوستان دي هم د زړه په
پاك کردن دي، دوي پربنبی غيره مينه اشنائی يې ده له خدايه
موافق ځما له کتابه اراسته د پاك رسول پرښه سنن دی. پاك
الله دی په دوستی واړه نيولی چې له خلقه تبرادي هم چې
نغښتی د رسول د شريعت په پراهن دي، په دا فساده زمانه
کښې هر څوك لاف د درويشی کا، دوی د وولس فرقې شوې،
يوه طايفه ناسته د پاك رسول په ښه سنن دي.

نو د پورتنيو څيړنو او ليکنو په استناد زمونږ استنتاج
دادی، چې وروسته له ۹۰۰ هجري څخه د نثر بڼه بدله او په نثر
کې د ليکوالو ادبي سبك اوښتی. د پخواني ادبي سبك يعنې د
((مرسل نثر)) څخه چې خوږې، رواني، محاورې، عام فهمه او د
اغلاق او پيچلتوب څخه ليرې او د سجع التزام په هغه کې نه
ليدل کيدو او هم د عربي او پارسي کلمات او لغات لږ پکښې
استعماليدل. نو په دې عصر کې يعنې له نه سوه هجري څخه
وروسته يو وار د لومړي ځل له پاره ګورو، چې ((مرسل نثر)) په
((فني نثر)) بدليږي، د سلاست څه وزي، په مکتوبی او ملفوظی
خبرو اوکلام کې، اغلاق او پيچلتوب ليدل کيږي. علی الخصوص
د يوې ياکله کله د دوو جملو په پاي کې د سجع الزام ډير رعايت
او تاءکيد او د ليکوالو په نوشتو کې ليدل کيږي لکه د روښان د

(خيرالبيان) او هم دده د پيروانو په آثارو کې او بيا وروسته داخوند درويزه په پښتو (مخزن) او دده په نورو پارسي آثارو کې لکه تذکره الابرار و الاشرار.

نو ويلاي شو، چې د فني نثر موسس او د همدغې ادبي سبك د مکتب لومړنی استاد، بايزيد روښان دی، چې د نوموړي په زمانه کې دده پيروان، اولاده او مريدان او بيا دده ځينې مخالفان لکه اخوند درويزه، پيروان اولاده يې. د بايزيد روښان د ادبي سبك د مکتب يعنې د (فني نثر) شاگردان، پيروان او ځينې له هغو څخه د بايزيد مخلصان، او ارادتمندان وو. د مثال په توگه که د اخونددرويزه ځينې مؤلفات لکه د ((مخزن)) کتاب ولولو نو اوچت ښکاري چې په ليکنې کې يې د ليك اسلوب د بايزيد دخيرالبيان سبك او اسلوب ته ورته دی. پخپله اخوند درويزه وايي چې دخيرالبيان په سبك مې د مخزن کتاب څکه وليکلو. چې دده طرزبيان مې خوښ شو.

نو له دې کبله نوموړي په ادبی سبك کې د بايزيد روښان د ادبي سبك دمکتب شاگرد او په پښتو نثر کې د اخوند درويزه ادبي سبك د بايزيد روښان د ادبې سبك پيروي کوي.

## د روښان د نثر ادبي خصايص:

تاسې د مخه د (فنی نثر) په بحث کې ولوستل، چې دغه ډول نثر څنگه پيدا شو او پر پښتو يې څنگه اثر وکړ.

پير روښان په پښتو کې د (فنی نثر) علم پورته کړ او دغه مخصوص مکتب يې په پښتو ادب کې پرانستله. چې د پښتو له پخوانی نثر سره ډير توپير لري او د خيرالبيان ليك دود هغه ډول نه دی، چې پخوا سليمان ماکو خپله تذکره پر ليکلې وه.

دغه سبك تر روښان وروسته، د اخوند درویزه له خوا په مخزن الاسلام کې تعقیب شو او د درویزه کورنۍ او نورو لیکوالو لکه بابوجان او اخوند قاسم او حسین او نورو هم تعقیب کړ. او دې ادبي مکتب د زرم هجري کال وروسته هم دوام وکړو.

پوهاند حبیبي دا ادبی سبك ((نیم منظوم نثر)) هم بولي او پخپل اثر د پښتو ادبیاتو تاریخ په دوهم ټوك کې داسې لیکي ((دا د ادبی سبك نیم منظوم نثر وو، چې (سجع) پکښې داخله شو)).

دا ادبی سبك یعنی (فنی نثر) ځانته خصوصیات لري، چې مهم خصایص یې لاندې بیل بیل ښیم.

۱- د اوږدو، یا لنډو جملو په اخر کې د (سجع) راوړل، چې دغه سجع هم اکثر په خیرالبیان کې په (آن) یا (ام) ختمیږي مثلاً. قرآن، سبحان، ښان، کلام، سلام.

## په دغو لاندنیو جملو کې مختلفې سجع وګورئ:

*لري دي اوسی په پریزګاري له واړه حرام*

*بل به نه کښیوزی خما به عذاب کی ادمیان*

۲ - د خیرالبیان په فنی نثر (سبك) کې (چې پوهاند حبیبی یې (نیم منظوم نثر) ګڼلی او پوهاند صدیق الله رښتین هسې فنی نثر یادې ادبي سبك ته ((نیمګړي شعر)) وایي) کله کله دکلماتو ... و ... ترتیب هم، د پښتو ژبې له جاري محاورې سره سم نه دي او کوښښ شوی دی، چې کلمات او الفاظ سره وړاندې وروسته شي، او دا کار به یا ارادي وو، د یو نوع (ریتم) او آهنګ لپاره یا دا چې غیر ارادي و د عربی او پارسی تر اثر لاندې مثلاً:

| د خیرالبیان نثر: | دغه نثر د پښتو پر محاوره سم: |
| --- | --- |
| ۱- راوښیه و ماوته رده او چار د طریقت پخپل فرمان او سبحان!<br>۲- سرسایه په نورو خاته واجب ده - چې وباسی ادمیان - هر چه له دغه وراندي ومري یا وزیږي یا شی مسلمان سرسایه یې واجب نشی...<br>۳- په منځ د حرفو د قرآن.<br>۴- بی مشغول دي ډیر ادمیان. | ۱ - او سبحانه، ماته د طریقت رده او چار پخپل فرمان راوښیه!<br>۲- اواجبه ده چې ادمیان سر سایه په نور خاته وباسی. که له دغه وراندې ځوك ومري یا وزیږي یا مسلمان شی نو سرسایه نه پرواجبیږي.<br>۳ - دقرآن دحرفو په منځ کې.<br>۴ - ډیر ادمیان یې مشغول دي.<br>په دې ډول روښان کلمات او الفاظ له خپله ځایه سره اړه وي، او غواړي چې د کلام آهنګ خوندي شی او دا کار ددغه سبك یوه ممیزه ده، چې دده په ټولو آثارو کې لیده شي. |

۳ - سره ددې چې د آهنګ د ساتلو لپاره روښان د پښتو جملې سره اړه وي، او د محاورې له جاري ډوله تخلف کوي، بیا هم دده نثر له وضاحته او صراحته نه وزي، بلکې خپل

مقاصد په فصاحت ادا کوي او له دې جهته خپل نثر ته يو خاص صلاحيت هم بخښي. مګر دا خوږوالی او ترېخوالی د اخوند درويزه په ((مخزن الاسلام)) کې ډير لږ موندل کيږي، سره ددې چې اخوند درويزه د ((خيرالبيان)) په ماتولو کې ډير کوښښ هم کړي دي.

ددې دپاره چې محترمو لوستونکو ته ښه څرګنده شوې وي، چې د روښان طرز کلام او دده په آثاروکې ملاحت او عذوبت کلام څرنګوالی او توپير، د اخوند درويزه د آثارو څخه څومره تفاوت شته او وروسته بيا قضاوت يې په لوستونکو اړه لري، نو دلته به زه د روښان يو څو خوږې جملې د اخوند درويزه د کتاب له پيل سره په مقايسوي توګه او دمقابله کولو په منظور نقلاً وليکم.

| د روښان خيرالبيان: | د اخوند درويزه مخزن: |
| --- | --- |
| زه هغه بی پروایم. چې هر چارتل بی شریکه. بی مله. بی کالی کرم نشته څما محتاجی شريك ومل و کالی وته لکه ادميان. حال د مخلوقان بدليږي نور نور کيږي. څما حال نه بدليږي، نه نور کيږي لکه حال دمخلوقان. | بسم نام د الله خدای دی کار ساز د کل عالم دی د بندګان. رحمان مهربان خدای دی. رزق روزي ورسوينه مومن و کافرو جمله و څانوران رحمان رحيم دواړه مشتق له رحمته د رحمان معنی می ووي. رحيم بسيار بخشانيده دی. هوری ډير به ورکوينه دي خاصه و مومنان. |

چا چې پس له روښان او درویزه څخه هم دا سبك او فني نثر تعقیب کړي دی، دومره خوږ توب او سلاست او وضاحت چې د روښان نثر لري. دا نور یې نه لري.

نو د پوهاند حبیبي د پورتني قول په استناد، ویلای شو، چې په رښتیا او واقعیت سره روښان د دغه مکتب ((فني نثر)) ادبي سبك، موسس او لومړنی واضع بلل کیږي.

۴ - کوم صریح الهجوي امتیازات چې، د شمالي پښتونخوا او جنوبي پښتونخوا. یعنی (پختون او پښتون) په لهجو کې شته، د روښان په نثر کې کوم خاص رنګ، چې یوې خواته مایل وي. نه لیدل کیږي. لکه دی داسې نثر لري، چې د شمال او جنوب ترمنځ مشترك دی او د منځني پښتونخوا. یعنی ((وزیرستان)) د لهجې اثر هم ډېر نه پکښې ښکاري مثلاً هغه امالي. چې دغه خلك یې لري لکه مور، میر، دده په نثر کې ډیري نه ښکاري.

پوهاند حبیبي ددې خبرو علت داسې ښيي. روښان د پلار له خوا کندهاري [۱] و او بیا پخپله ده په شمالي پښتونخوا کې تر پیښوره او د یوسفزو تر میرو پورې سیاحت او ژوند کړي و او مور یې د هند په پښتنو کې محشوره وه، نو ځکه دده په پښتو لیك کې دټولې پښتونخوا مشترك لهجوي رجحان لیده شي، مثلاً (مخ یې ووایو نه شي) د کندهار پر لهجه سمه جمله ده، مګر (زه نژدې یم و ادمیان وته له ځانه) د شمالي پښتونخوا رنګ لري، تروبویه، لولي، هوي، ورچاني، داسې کلمات دي، چې په کندهار کې نه مستعملیږي. اما ورڅخه، هسې، ښه،

(۱) د پښتو ادبیاتو تاریخ، دوهم ټوك، د پوهاند عبدالحی حبیبي تالیف، کابل، پښتو ټولنه، ۱۳۴۲

کښیوزي، کښیباسي او نور ډیر کلمات شته، چې د کندهار او جنوبي پښتونخوا د لهجې نمایندګي کوي او بل د شمالي پښتونخوا یعنې، د یوسفزو د لهجې غیر نافي ((نه)) کورت په خیرالبیان کې نه لیدل کیږي، لکه (له کورنه، راغی).

۵ - روښان ځنې خاص خاص پښتو نادر لغات هم استعمالوي چې د اخوند درویزه په اثاروکې نه لیدل کیږي.

مثلاً: (کړمکړ) د (امرو نهي) پرځای او (تورکښ) د عسکریت او لښکر پر ځای (ورمندن) د واجب او لازم (نغوړي) په معروفه یا، د شنونده او پیرو په معنی (یون) رفتار او تګ، (تله) د ترازو په مفهوم، (کالی) دالت او اسباب پر ځای، (چار) دعمل او کار په مفهوم، (نغوته) تحریك او اشاره، ((رده)) لار او طریقه ((غوښت)) خواهش او هوا ((ستروي)) د عظمت په مفهوم او معنی سره.

دا لغات او کلمات ځیني مونږ هم پیژنو او دنورو شاعرانو په دیوانونو کې راغلي دي لکه! نغوته، غوښت، کالی، یون.

مګر د ځینو کلماتو استعمال او راوړل د روښان په آثارو کې خاص دي چې د اخوند درویزه په آثارو کې نشته. مثلاً د روښان ځیني خاص کلمات لکه کړ، مګړ، ورمندن، تورکښ، ستروي او نور.

۶ - ځکه چې روښان پخپل کتاب کې دیني، اخلاقي، عرفاني، فقهي ابحاث سره یوځای کړي دي، نو طبعاً عربي کلمات او مصطلحات چې په دغو ابحاثو یې اړه درلوده، هم دده په نثر کې ډیر دي لکه: صلومه، نبی، سلام، حلال، حرام، رحمن، محبت، بقا، فنا، رحمت، طریقت، توبه، فرض، شیطان

او نـور. چـې دا رنګـه عـربي کلمـات او مصـطلحات د اخونـد درویـزه پـه آثـارو کـې هـم ډیـر شـته، لکـه: طریقت، رحمت، فـنا، بقا، رحمن، الله، خداي، حلال، حرام، سلام، رحمن، رحیم.

۷ - روښـان ځـای پـر ځـای ځیـنې خـبرې لـه عـربي څخـه راوړي، پـه ایـاتو او احادیـثو او عـربي مقولاتـو، استدلال کـوي، چـې دا د پخوانیو په آثارو کې لږ وو. په تیره بیا په نثر کې.

۸ - د روښـان ځینـي پښـتو جملـې مسـتقیماً لـه عـربي څخـه تـرجمه شـوي دي، مګـر ده یـې عـربي اصـل نـه دي ښوولـی، خـو د لویـو صـوفیانو اقـوال یـاد احادیـث شـریفه مقاصـد یـې خلـص پـه پښـتوکې را اړولـی دي او کلـه ایـات شـریفه پـه پښـتو تـرجمه کـوي. مـثلاً د ((الله الصـمد لـم یلـد و لـم یولـد)) مقصـد هسـې وایـي. (زه هغـه بـی پـروایم، چـې هـر چـا د تـل بـی شریکه، بـې ملـه، بـې کـالی کړم، نشته ځما پلار، نزهمن، نه خور، ورور.))

مګـر دا رنګـه خصوصـیات بـیا د اخونـد درویـزه پـه آثـارو کې نه لیدل کیږي.

۹ - د افعـالو تکـرار لکـه د نـورو مـتقدمانو پـه نـثر کـې، چـې شـته، د روښـان پـه نـثر کـې هـم لـیدل کـیږي او داکـار دې ډیـر کـوي مـثلاً: ((حـال دمخلوقـان بدلـیږي. نـور نـور کـیږي. ځمـا حـال. نه بدلیږي نه نور کیږي)).

کلـه کلـه دکلمـاتو تکـرار پـه پښـتو جملـو کـې راځـي، او دا هـم نـه معلومـیږي بلکـې ښـه خونـد کـوي او د مقصـد د توضـیح لـپاره پـه ډیـر سلاسـت او جزالـت تکـرار کـیږي لکـه: ((زه یـم پـه ویښـته پـه پوست کې د ادمیان، په وینه په غوښه په ماغزه د ادمیان)).

* * *

# اتـــم فصل

## د پښتو ادبیاتو په تاریخ کې د اخوند درویزه او دده د پیروانو ادبي مقام

لســمه هجـري پـيړۍ دپښتــنو پـه سیاســي، اجتماعـي، ملـي او ادبــي تــاريخ كــې خــاص مقــام لــرى پــه دې پېړۍ‌کــې د پښتــنى سـيموله يـوې بـرخې څخـه د هـند د لويـې ګورګـاني امـپراطورۍ پـه مقــابل كــې دقــيام لمــبې پورتــه شــوې، دې لمــبو ورو ،ورو، زور اخيســت او پـه زياتـرو پښتــنى سـيمو كـې يـې لمـن پراخـيده، مـنظم حـركات پـيل كـيدل، او ورسـره د پښتــنو داتحــاد او پيوســتون شـرايط هـم برابـريدل، دې حـركاتو د هـند د ګورګـانى امـپراطورۍ دمانـې سـتنې ولړزولـې او پـه دې هڅـه او فكـركې شـول، چـې د

پښتنو ددغه نهضت مخه ونیسي، له مسلحانه بریدونو سربیره یې په خپله د پښتنو په سیمو کې هم ځینې خلك راپیدا کړل، چې ددغه نوي فکري حرکت په وړاندې ودریږي او سرسختانه مبارزه ورسره وکړي.

د پښتنو په سیمو کې ددې فکري حرکت مؤسس بایزید روښان و، چې د تبلیغ او خپلو لیکنو د لارې یې د هغه وخت د شرایطو سره سم د خپلې نظریې مفکوروي بنسټونه ټینګ کړل. د پښتنو په سیمو کې یې پلویان او پیروان وموندل، چې په دې پیروانوکې ځینې عالمان او ادیبان هم شامل وو. د بایزید ادیبو ملګرو، دخپل مرشد د مفکوروي بنسټونو په بناء په پښتو ژبه آثارو لیکل د روښان او دده د پیروانو آثارو زموږ د ادبیاتو په تاریخ کې د روښاني آثارو یا د روښان د ادبي مکتب په نامه یادیږي.

لکه څنګه چې د مخه مو وویل، د روښان او روښاني نهضت په مقابل کې، په خپله د پښتني قبیلو له منځه ځینې متنفذ علماء راولاړ شول او د روښاني نهضت په مقابل صف کې ودریدل دوي هم دتبلیغ او لیکنو د لارې د روښاني تبلیغ او لیکنو مقابله کوله[1] دا چې ددغه حرکت ملي زیانونه څومره دي او په هغه وخت کې یې د پښتنو په منځ کې د بې اتفاقۍ اورونه بل کړل او ډیر پښتانه په دغو اورونو کې وسوزیدل، دا یوه بیله موضوع او بیل بحث غواړي او ما ددې کتاب په بیلابیلو برخو کې دا موضوع لږ او ډیره څیړلې ده. دلته یوازې

(۱) دا خبره د هیرولو وړ نه ده چې درویزه او دده د ځینو پیروانو په آثاروکې په ښکاره ډول بایزید روښان او دده د ډلې ځینو ملګرو ته بد ویل شوي دي. مګر د روښان او نورو روښاني علماوو په آثارو کې د درویزه او دده کورنۍ ته داسې بد څه، چې یادونه یې هم نه ده شوې.

غوارم، چې ګران لوستونکی په دې پوه شي چې دوهمې ډلې، د خپل مرام او مقصد د سرته رسولو د پاره څومره پښتو آثار ایجاد کړي دي او دغه آثار زموږ د ژبې په ادبي تاریخ کې څه مقام لري؟

ددې دوهمې ډلې مشر اخوند درویزه ننګرهاری دی. اخوند درویزه دګدای زوی په ۹۴۰ هـ کال د ننګرهار په پایین کې زیږیدلی دی، متداوله علوم یې د سیمې او منطقې په علمي مدارسو کې د متجرو علماو څخه لوستي دی. د آثارو دمطالعې څخه یې معلومیږي چې په شرعي او فقهي علوموکې متجر ملا و، له پارسي ادبه یې هم بهره درلوده په عربي ژبه هم پوهیده تفاسیر او احادیث یې لوستي وو. د پښتنو قومي اوملي روایات هم څه ناڅه ور معلوم وو، د وخت د شرایطو سره سم ددغسې یو علمي بیس په درلودلو سره اخوند درویزه د روښان او روښانیي طرز فکر پر ضد په تبلیغ او لیکنه پیل وکړ، ده د خپل فعالیت په دوران کې په پښتو او پارسي ژبو ډیر آثار ولیکل دده آثاروزیاتره د روښاني آثارو په مقابل کې لیکل شوي دي. ګویا دده په عقیده، ده په خپلو آثارو کې د روښانیانودمفکورې د رد خبرې کړې دي. د اخوند درویزه له آثارو څخه مخزن الاسلام، ارشاد الطالبین، ارشاد المریدین، تذکره الابرار و الاشرار د یادونې وړ دي.[۱]

---

(۱) که څه هم ددې اثر په بیلا بیلو فصلونوکې د اخوند درویزه آثار او هم دده دکورنۍ او پیروانو آثار معرفي شوي دي او همدا رنګه د دغو اشخاصو په باب (داخوند درویزه په شمول) مفصلې خبرې شوې دي، مګر ددې فصل د خپرلو لپاره زه اړوم، چې ددغو خلکو یعنې د اخوند او دده د پیروانواو کورنۍ) په باب هم لږې خبرې بیا وکړم او ددوی آثار هم لږ وښیم، ځکه په پښتو ادبیاتوکې د دوی دمقام د څرګندولو اړه ما مجبوروي چې دغه خبرې لږ مختصرې بیا وکړم، هیله ده چې تکرار تلقي نه شي

په دې آثارو کې مخزن الاسلام، چې زیاتې برخې یې په پښتو ژبه لیکل شوې دي، دڅورسالو او مقالو مجموعه ده، چې هره رساله او مقاله یې د یوه ځانګړي اثر حیثیت لري. په مخزن الاسلام کې دغه لاندې اثار شامل دي:

۱ - د سراج الدین ابو محمد عبدالله بن عثمان الاوشی الفرغانوي د قصیدې امالی پښتو ترجمه.

۲ - د شرف الدین ابو عبدالله بن حماد البوصیري د قصیدې برده پښتو ترجمه.

۳ - د شیخ الاسلام امام نجم الملة الدین ابو حفص عمر بن محمد اسمعیل بن محمد من اقمان د عقاید نسفی پښتو ترجمه.

۴ - د لطف الله نسفی الکدیانی د خلاصه یې کیدانی ترجمه.

۵ - د دوولیسو فرقو د عقاید و بیان، دا تصوفي رساله ده چې شیخ الاسلام نسفی په پارسی ژبه لیکلي او اخوند درویزه په پښتو ژبه ترجمه کړې ده.

۶ - د تجوید رساله. دا رساله مخارج حروف نومیږي، دمخزن الاسلام په دریم فصل کې راغلي ده او درویزه له عربي ژبې څخه ترجمه کړې ده.

۷ - مقاله در بیان معتقدات اهل سنت. دا رساله په درویشتو نکتوکې څیړل شوې ده.

۸ - مقاله در ذکر ملحدي که سبب شده است تألیف این کتاب را. په دې برخه کې چې په پښتو او پارسی دواړو ژبو راغلي ده،د روښانیانو او روښانی نهضت پر ضد یوبیان راغلی دي.

۹ - لـه دې سربيره پـه مخـزن الاسـلام کـې د اخونـد درويـزه الـف نامـه، شـمايل نامـه، نورنامـه، ايمـان نامـه، پـنج ګوهـر او نـورې خـورې ورې ليکـنې او تـرجمې هـم راغلـې دي، ځيـنې پارسـي او عربي اشعار يې هم په پښتو ترجمه کړي دي.[۱]

اخونـد درويـزه هـم لکـه بايـزيد روښـان پـيروان پـيدا کړل، چـې د اخونـد درويـزه د آثـارو او افکـارو پـه پـيروي يـې پـه پښـتوژبه آثـار ايجـاد کـړل او شـعرونه يـې وويـل د اخونـد درويـزه پـه خـپله کورنـۍ کـې هـم عالمـان او دانشـمندان خلـك پـيدا شـول، چـې پـه پښـتو ژبـه يـې آثـار ولـيکل. دغـه رنګـه نـورو پښتـنو علمـاو هـم د اخوند درويـزه د سـبك پـيروي وكـړه او پـه پښـتوژبه يـې آثـار ولـيکل، چـې د اخونـد درويـزه او دده د کورنـۍ او پـيروانو آثـار زمـوږ د ادب پـه تـاريخ کـې د اخونـد درويـزه د ادبـي مکتـب پـه نامـه ياديږي.

داخونـد درويـزه د آثـارو يادونـه خـو مـو پـه اجمالـي ډول وكـړه، اوس بـه دده د پـيروانو او کورنـۍ آثـار يـاد کـړو او پـه پـای کـې بـه د پښـتو ادبيـاتو پـه تـاريخ کـې ددغـو آثـارو پـه مقـام خـبرې وکړو.

۱ - د اخوند درويـزه پـه کورنـۍ کـې د يـادونې وړ عـالم او متصـوف سـړی اخوند کـريمداد دی پـه پښـتو ژبـه د شـعر لـوړه قـريحه لـري. پـه شـعر کـې يـې دتصـوف پلوشـې لـه ورايـه ځلـيږي، دده

---

[۱] د پارسـي اشـعارو پـه لړکـې چـې اخونـد درويـزه کـوم اشـعار پـه پښـتو اړولـي دي، پـه هغـو کـې دناصـر خسـرو قـباديانی بلخـی د يـوې ربـاعی تـرجمه پـه خـاص ډول د يـادونې وړ ده. دا تـرجمه پـه مخـزن الاسـلام کـې راغلـې ده. پـه مخـزن کـې ځيـنې نـور عـربي ابـيات هـم پـه پـښتو تـرجمه شـوي دي (د سواتنامې حواشی)

په پښتو ژبه یوه الف نامه لیکلې چې د عربی الفبا د هر توري تشریح یې په یوه غزله کې کړې ده.

دا الفنامه د پښتو دتصوفي ادبیاتویوه غوره برخه ده، چې له فکري ارزښتونو سر بیره یې شعریت هم د یادونې وړ مقام لري. کریمداد په پښتوژبه نور متفرق شعرونه هم لری او په پارسی ژبه یې د حقوق زنان په نامه یوکتاب لیکلی دی. سربیره پر دې اخوند کریمداد د خپل پلار آثار لکه: مخزن الاسلام او نور سره ترتیب او راټول کړي دي.

۲ - عبدالحلیم دعبدالله زوی اود اخوند درویزه لمسی دی، ده هم تصوفي او دیني موضوعات په پښتو شعر نظم کړی دی. دده د اشعارو نمونې د مخزن لاسلام په ملحقاتو کې خوندي دي.

۳ - مصطفی محمد: د نورمحمدزوي د کریمداد لمسی د اخونددرویزه کړوسی دی، ده په ۱۱۱۲ هـ ق کال کې مخزن الاسلام ته دوباره ترتیب ورکړی دی او خپل پښتو اشعار یې هم دمخزن سره مله کړي دي. دده شعرونه هم تصوفي او دیني رنګ لري.

۴ - رحیم داد: دمصطفی زوی دنورمحمد لمسی د کریمداد کړوسی او د درویزه کودي دی. ده هم په پښتو دیني او تصوفی اشعار ویلی دي، دده اشعار هم د مخزن الاسلام دځینو خطي نسخو په ملحقاتو کې پیداکیږي.

۵ - عبدالرحیم: دی هم د اخوند درویزه د ادبي مکتب د شاګردانو څخه حساب شوی دی په پښتو ژبه یې تصوفي او دیني اشعار ویلي دي، شعرونه یې دمخزن او ځینو خطي نسخو په ملحقاتو کې پیداکیږي.

۶ - عبدالسلام: د پاینده محمد زوی او د اخوند درویزه د ادبي مکتب د شاګردانو او پیروانو څخه حساب شوی دی، ده

په پښتو ژبه دیني اوتصوفي شعرونه ویلي دي اشعار یې د مخزن الاسلام دځینو خطي نسخو په ملحقاتو کې راغلي دي.

۷ - ملا اصغر: د ګدای زوي د اخوند درویزه ورور دی. ده هم داخوند درویزه سره په تبلیغي چارو کې برخه درلوده اواخوند درویزه یې په خپلو آثارو کې په ډیر ښه نوم یادوي، دی هم د پښتو ژبې شاعر او لیکوال دی. پښتو منظومات یې د اخوند درویزه دمخزن د ځینو نسخو په ملاحظاتو کې شته.

۸ - عبدالخالق: عبدالخالق داخوند درویزه زوی او د یوولسمې پیړۍ د علماو. څخه شمیرل کیږي، ده په پښتو ژبه د شرایطو احکام ایمان په نامه یوکتاب په پښتو نظم کړی دی.

۹ - اخوند احمد: د اخوند درویزه د ادبی مکتب له پیروانو څخه مشهور سړی،چې د ډیرو تالیفاتو څښتن دی، ده په یوولسمه پیړۍ کې ژوند کړی دی او ډیرې دیني قصې یې په پښتو اړولې دي. دده له آثارو شمیره د پښتو ادبیاتو د تاریخ محققین تر اتو پورې شمیري له آثارو څخه یې د یوسف قصه، د ابراهیم قصه، وفات نامه. شمایل نامه او نور مشهور دي.

داؤ په لنډ ډول د اخوند درویزه او دده د ادبي مکتب د پیروانو او د دوي د آثارو معرفي اوس به راشو اووبه ګورو چې دغه آثار د پښتو د ادبي تاریخ په مطالعه کې کوم مقام لري.

۱ - اخوند درویزه د مسجع نثر په داسې ډول په پښتو ادب کې دود کړ، چې نظم ته ډیر نژدې دی او دا چې د ځینو برخو څخه یې د زیاتوالی او کموالی له پاملرنې وروسته سم نظم جوړیږي (دا نظریه د پوهاند عبدالشکور رشاد ده).

۲ - اخوند درویزه خپله د وخت د غوښتنو سره سم د عربی او پارسي څخه ځینې آثار په پښتو ترجمه کړي. چې زموږ د ژبې

د ادبي آثارو په پياوړتيا کې يې ګټې نه دي لکه: د خلاصه کيداني ترجمه، د قصيدهٔ برده ترجمه، د قصيده امالي ترجمه او د قرآن عظيم د سم لوست په منظور د تجويد د رسالې ترجمه.

له عربي او پارسي ژبو څخه پښتو ته د آثارو د ترجمې جريان د اخوند درويزه په پيروانوکې هم پياوړی و. د اخوند په اولاده کې ځينو کسانو له عربي او پښتو څخه ځيني مفيداثار په پښتو ترجمه کړي دي لکه په پښتو ژبه کې د لمانځه ترجمه د کريمداد او بيا په وروسته کې د رحيمداد له خوا همدارنګه د سعدي د ځينو غزلو ترجمه دعبدالحليم له خوا وګ (د زرغونې ياد).

۳ - د اخوند درويزه د پيروانو په اثارو خصوصاً داخوندکريمداد آثار د يوه خاص تصوفي جريان نمايندګي کوي او له دې پلوه د فکري ارزښت درلودونکي دي. د کريمداد الفنامه د پښتو په کلاسيکو ادبياتو کې د اوچت ادبي او فکري حيثيت خاوند ده، د کريمداد الفنامه د تصوف او عرفان په خاصو رموزو پسوال شوی ده، او د اسلامي تصوفي په څيړلوکې په عام ډول او په پښتو شعر کې د عرفاني افکارو د څيړنو په جريان کې پرې په خاص ډول بحث کيدای شي.

۴ - د اخوند درويزه په ځينو پارسي اثارو لکه: تذکره الابرار و الاشرار او هم د مخزن ځينې برخې د پښتنو د تاريخ په رڼا کولو او د پښتني کلتور د ځينو برخو په څلولو کې د ښه ماخذ کار ورکوي.

د اخوند درويزه د آثارو د کلتوري ارزښتونو په باب سر محقق محمد صديق روهي يوه مفصله مقاله ليکلې ده. ددې څيړنې او دې ته ورته څيړنو په رڼا کې موږ دا معلومولای شو چې د درويزه آثار د کلتوري څيړنو له پلوه هم بې ارزښته نه دي

او زموږ اوسنۍ څېړونکي او آینده ګان کولای شي چې د پښتنو د تاریخي کلتوري څېړنو په لړ کې پلټنې او څېړنې پرې بنا کړي.

۵ - د اخوند درویزه پیروان په هغو لومړیو ادیبانو کې حسابیږي چې په پښتو کې یې قیصې لیکلې دي او زموږ د قصه یې ادب پیل د اخوند درویزه د پیروانو له آثارو څخه کیږي. د اخوند درویزه په پیروانو کې اخونداحمد هغه سړی دی چې د یوسف، ابراهیم او نورو دیني قیصې یې لیکلې دي.[1]

۶- په پښتو ادب کې د شمایل نامو پیل هم اخوند درویزه کړی دی او ده خپلې شمایل نامې د اخوند درویزه د شمایل نامې په بناء لیکلې ده اود سکندر خان ختیك د شمایل نامې ماخذ هم د اخوند درویزه شمایل نامه ده. د سکندر خان ختیك شمایل نامه په ۱۳۶۴ هـ ش کال د پښتو ټولنې له خوا د زلمی هیوادمل په زیار چاپ شوه.

۷- د اخوند درویزه تجوید هغه لومړی تجوید دی، چې په پښتو کې د قرآن لوستلو سمې طریقې راښيي. دا تجوید د پښتو تجویدونو په سر کې راځي او تر دې تجوید دمخه بل تجوید تر اوسه نه دی معلوم. (په دې باب تفصیل د اکاډیمسین رشاد له خوا د مخارج حروفو په تعلیقاتو کې راغلی دی.)

۸- د اخوند درویزه پیروانو متفرق اثار د قدامت په لحاظ زموږ د ادبي تاریخ له پاره د تحقیق او څېړنې ښه مرجع ده. که

---

(۱) د ارزاني روښاني په آثارو کې هم د حکایت رسول په نامه یوه قصه شته، چې زلمی هیوادمل په ۱۳۵۵ هـ ش کال کې د وږمې مجلې د همدې کال د لومړۍ ګڼې له لیارې خپره کړې ده. مګر دا قصه او د اخوند احمد قصې د فني مشخصاتو له پلوه ډیر تفاوتونه لري. د اخوند احمد قصې فن ته ډیرې نژدې دي

څه هم دده د پیروانو متفرق اثار ښایی نور فکري او ادبي قوت ونه لري، مګر د هغه وخت د شرایطو سره سم په زړه پورې آثار شمیرل کیږي او مونږ په یوولسمه پیړۍ کې د خپلې ژبې د ادبیاتو د تاریخ بنستیونه پرې دروو.

۹- د اخوند درویزه سبک حتی تر دوولسمې پیړۍ پورې د پښتنو په دیني حلقو کې محبوبیت درلود او تر کندهار او هراته پورې پښتنو عالمانو په خپلو لیکنو کې دده د سبک پیروي کوله. لکه نور محمد غلجي خپل نافع المسلمین او شیخ حسین هراتی خپل نافع المسلمین د اخوند درویزه د مخزن په سبك لیکلي دي او دې دواړو پښتنو عالمانو د خپلو آثارو په مقدمه کې د اخوند درویزه او دده دمخزن یادونه کړې ده. دا باید ووایو چې دنورمحمدنافع المسلمین په ۱۳۶۳ هـ.ش کال کې د زلمی هیواد مل په زیار دکلتور د دولتی کیمټې له خوا چاپ شوی دی. اود شیخ حسین د نافع المسلمین خطي نسخه د پښتو ټولنې د کتابخانې په خطي کتابونو وکې خوندي ده.

۱۰- د اخوند درویزه مخزن او نور آثار او د کریمداد الفنامه او نور آثار او دده د پیروانو آثار د ایجاد له زمانې نه تر اوسه پورې، د پښتنو په دیني حلقو کې خاص محبوبیت اومقبولیت لري پښتانه علماء دغه آثار په مینه لولي او همدا علت دی. چې تر بل هر پښتو اثره د مخزن الاسلام نسخې زیاتې لیکل شوی او په ټولو پښتنو سیمو کې پیداکیږي.

۱۱- د الفنامو پیل که څه هم د روښانیانو له خوا شوی دی، او روښاني شاعرانو لکه. ارزاني، علي محمد مخلص، مرزا دولت او واصل الف نامې ویلي دي. د درویزه په آثارو کې

هم د شعر دغه معنوي دول تبارز کوی او وروسته دده په اولاده کې هم اديبان او شاعران الف نامې جوړوی.

لکه: کريمداد، عبدالحليم او مصطفی محمد. د کريمداد الف نامه خو دومره مشهوره ده، چې حتی ډېرو لويو عالمانو شرحې پرې ليکلې دي. لکه: د عبدالله قصوري خويشکي شرح، دحاجی بهادرکوهاتی شرح او وروسته د عثمان په نامه شرح ((ددغو خبرو تفصيل د هند دکتابخانو پښتو خطي نسخې نومي کتاب په تعليقاتو کې راغلی دي.))

۱۲- که څه هم د عربي او پارسي ادبياتو تر اغېزې لاندې په ډېرو پخوانيو پېړيو کې ځينې شعري اصناف لکه، قصيده غزل، ټوټه، رباعي او نور په پښتو شاعري کې باب شوي دي، مگر د درويزه او دده د پيروانو په آثارو کې هم ځينې دغه شعری اصناف لکه، غزل، ټوټه او مخمس ځان ښکاره کوی، چې د پښتو شعر د تاريخ په مطالعه کې ترې ښه گټه اخيستل کيدای شي.

۱۳- د اخوند درويزه، دده د کورنی او دده د پيروانو آثار د دينی ادبياتو په وده کې ډير مهم نقش په غاړه لري. په دغو آثاروکې د لمانځه، اوداسه اودمسلمانی پنځه بناوواو نورو دينی او شرعي احکامو په تفصيل او تشريح کې ډير لوی کار شوی دی، چې ددين ښوونی او تعليمات يې په پښتو کې پښتنو ته ورانديې کړی دي. او ددوی آثارو په ټولو پښتنی سيمو کې نفوذ پيداکړی دی. او په دې سلسله کې ځينې ليکل شوي آثار حتی تر اوسه د دينی تعليماتو په نصاب کې ځای لری او زموږ د پښتنی سيمو دينی مدارس ورته په درنه سترگه گوري. دې آثارو وکولای شول چې پښتو د مدرسو په نصاب کې داخله شی.

۱۴- د اخونـد درويـزه د پلويـانو اد دده د کورنـۍ د ادبياتو يادونـه خـو پـه دې بحث او ددې کتاب پـه نـورو برخو کـې وشـوه. دغـو خلکـو خپل آثـار کـه لـږ دي يـا ډيـر دي د اخونـد د آثـارو د فکـري او شـکلي ځانګړنو پـه پيروۍ کښلـي دي. مګـر دا بـايد هيره نـه شي چې لـه يادوشـوو کسـانو سربيره دځينو نورو کسـانو آثـار هـم د دوی پـه پيروۍ کښـل شـوی دي لکـه. د شـيخ محمـد سـعيد شـفاعت نامـه او د اخونـد موسـی ښځي کوټی رسـايل، شـيخ محمـد سـعيد د اخونـد د زمـانې سـړی ښکـاري. او اخونـد موسـی خـو دتـاريخ مرصـع د کښـنو لـه مخې پـه دولسـمې پيړۍ کـې ژونـدی و. د دغـو دوو تـنو آثـار د خپلو شـکلي خصوصـياتو لـه امله همـاغـه د اخونـد درويـزه د مخـزن کـړه - وړه لـري. لـه دې يـادونې ځـځـه مقصـد دا و چې د اخونـد د سـبک د پلويـانو دايـره پـراخه ده. او مورږ په حقه کولای شو چې دی د يومکتب مؤسس وبولو.

# نتیجه

داخوند درویزه دده د کورنۍ او پیروانو او همدارنګه د دوي د ادبي دریځ په باب ددې لیکنې په پای کې باید ووایو چې:

۱ - اخوند درویزه (۹۲۴ - ۱۰۲۸ هـ ق) د لسمې هجري پیړۍ د څلورمې لسیزې په وروستی کال د ننګرهار د شینوارو د پایین د یوې بانفوذه علمی او روحانی کورنۍ په غیږکې وزېږید. دی په پښتنی چاپیریال کې لوي شو، د وخت مروج علوم یې د سیمې او دهندوستان په علمي درس خانوکې پاي ته ورسول فقیه، تفسیر، احادیث سلوك او معرفت او نورو شرعي او دیني علومو کې د وخت له ښوعلماوو څخه وګڼل شو.

د مروجو علومو تر زده کړې وروسته یې د خلکو د تلقین، روحانی او دیني روزنې لپاره ملا وتړله. خلکو په درناوي ورته کتل، او د پښتو نخوا په تولو سیمو کې یې روحانی‌نفوذ خپور شو. د وخت حکومت او محلی حکامو هم په درناوي ورته کتل،

او دربار ته یې هم لاره درلوده. د پښتونخوا دغه لوی عالم د اته اتیا کالو په عمر په ۱۰۲۸ هـ ق کال مړ شواو د پېښور د هزارخانۍ په هدیره کې خاورته وسپارل شو. چې پر قبر یې اوس هم ګومبته ولاړه ده، او خلک یې په درناوي زیارت ته ورځي او د لوي خداي (ج) له درباره دده په روی خپل مرادونه غواړي.

۲ - اخوند درویزه په داسې وخت کې نړۍ ته سترګې پرانیستې چې د هند د ګورګاني شاهانو حکومت د هند په پراخه سیمه ان تر کابله خپلې وزرې غوړولې وې، او د پښتنو یوه عمده سیمه د هند د ګورګاني شاهانو دحکامو له خوا اداره کېده، او زموږ دملک ځینې نورې برخې د شمال له خوا د ماوراءالنهر د خانانو تر واک لاندې وې، او د غرب له خوا ان تر کندهاره زموږ سیمې د ایران (پارس) د شاهي کورنيو د قدرت په ولکه کې شاملې وې. په حقیقت کې زموږ هیواد د دریو شاهي قدرتونو د رقابت مرکز و، او هر قدرت غوښتل چې دخپل نفوذ او قدرت ساحه زموږ په ملک کې پراخه کړي.

په اجتماعي لحاظ خلک د جاګیردارانو او محلي خانانو د رعیت په ډول ددوي تر مستقیم واک لاندې وو. د مرکزي او ایالتي حکومتونو له خوا محلي بانفوذه کسانو ته جاګیرونه ورکړل شوي، عام اولس ددغو جاګیردارانو دهقانان او مزدوران وو.

د هغې دورې له اسنادو ښکاري چې د دولت عمومي اتکا په جاګیردارانو، با نفوذه خانانو (چې زیاتره جاګیرداران هم وو) او دیني علما وو او با نفوذه روحانیونو باندې وه.

۳ - هغه زمان کې چې اخوند درویزه ژوند کاوه، د پښتونخوا په سیمو کې یوه بله مذهبي ډله له نویو فکرونو او روشونو سره منځ ته راغله. ددغه نهضت مشر بایزیدروښان و

ده د خدای(ج) د پېژندنې لپاره د وحدة الوجود لاره غوره کړه. دوی غوښتل چې په جامعه کې يوه تحرك ايجاد شي او موجود رکود له منځه يوسي.

د جامعې بانفوذه اقشارو دده له فکر سره مخالفت وښود، خصوصاً ديني عالمانو او هغو روحانيونو چې د وخت د حکومت پاليسی يې تعقيبوله د دوي مخالفت وکړ.

روښان پير په توله پښتونخواکې پيروان وموندل دغه رنګه درويزه او د درويزه په څير نورو عالمانو هم په جامعه کې طرفداران درلودل. د دغو دواړو ډلو ترمنځ مشاجرې او مناقشې وشوې. دغو مناقشو تر ډيره دوام وموند، دروښان د زامنو او لمسيو له خواهم دغو مبارزو جريان درلود.

۴ - اخوند درويزه په پښتو - پارسي او عربي ژبو پوهيده، او په دغه درې سره ژبو کې يې د ځه ليکلو توان درلود.

ده د شرعي او ديني تلقين او دخلکو د پوهولو لپاره په پښتو - پارسي او عربي ژبو په ليکلو پيل وکړ ډير آثار يې له عربي ترجمه کړل، په پښتويې ډير رسايل وليکل چې مجموعه يې په مخزن الاسلام کې راغلې ده. دغه رنګه نور آثار يې په ارشاد الطالبين او ارشاد المريدين کې خوندي دي او تذکره الابرار و الاشرار خويې د پښتنو د تاريخ او کلتور په څيړنه کې ډير مهم کتاب دي.

ده د پښتو آثاروپه کښنه کې له يو خاص سبك څخه کار واخيست، چې څه برخې يې نيمه منظومې او ډيرې برخې يې نظم دي. دده نظمونه او نيمه منظوم آثار د ژبې، د وينا د سبك د اصطلاحاتو د کارونې اومضمون لپاره ځانته ځانګړې روښونه لري.

۵ - د اخوند درویزه کورنۍ، کې هم د پښتو ژبې لیکوال او شاعران راوزیږیدل، چې هر یوه یې په دینې علومو او تصوف کې پوره لاس درلود،او خپل افکار یې په پښتو ژبه ولیکل او نظم یې کړل.

د اخوند درویزه د کورنۍ په لیکوالو او شاعرانوکې: ملا اصغر، عبدالخالق، کریمداد، عبدالحلیم، مصطفی محمد او رحیمداد د یادونې وړ دي. ددغو کسانو آثار د فکر او مضمون او همدارنګه د شکلي رغښتونو له پلوه داخوند له فکراو نظره متاثر دي او د اخوند د سبك پیروان دي.

۶ - داخونداو دده د کورنۍ آثار په ټوله پښتونخواکې ان تر هراته ورسیدل او د پښتنو په علمي او دیني حلقو کې دخلکو داستفادې وړشول.

نورو پښتنو علماوو او د انشمندانو چې په پښتو کې یې د څه لیکلو توان درلود، هغوی هم په خپلو کښنو کې د دوي آثارو ته توجه وکړه، او د اخوند د آثارو په سبك یې آثار ولیکل چې له هغې جملې څخه مور اخوند احمد، میر حسین هروي، شیخ محمد سعید، نور محمد غلجي او نور حسابولاي شو. دغو خلکو په لسګونو آثار په پښتو کښلي دي.

۷ - د روښان پیر او دده د پیروانو د پښتو ایجاداتو سره د درویزه خپل اثار یو څه روابط لري، مګر دا چې د سبك له پلوه دې خامخا یو شی وی داخبره یو څه تامل غواړي. روابط څکه سره لري چې درویزه خپل ځینې آثار د روښان پیر او دده د پیروانو د آثارو په تقلید کښلي دي لکه: د رسم الخط رساله، الفنامه، تذکرة الابرار والاشرار. ویل کیږي چې درویزه تذکره

الابـرار و الاشـرار د ارزانـی روښـانی د مـراءه المحققيـن پـه تقلـيد کښلې ده.

۸ - اخونددرويـزه او دده کورنـۍ او پـيروانو پـه پښـتو کـې ځيـنې مهـم آثـار وکښـل، لـه عـربی او پارسـی ژبـوو څخـه يـې ډيـر اخلاقـي، دينـي او تصـوفي مطلـب پـه پښـتو وژبـاړل، او د ژبـاړې کـوم دود چې پـه دريمـه هجـري پيړۍ کـې پښتـنو پيل کړي و، هغـه يـې وپالـه او خـاص رونـق يـې ورباښـه، د پښتـنو پـه دينـي حلقـو کـې يـې د پښـتو کښـنې عمومـی جـريان تـر تاثـير لاندې راوسـت. او د درويـزه سـبك ان دوه درې سـوه کالـه پـه ځيـنو پښتـنو دينـي لـيکوالو کې محبوبيت درلود.

## ماخذ او منابع:

- اثر، عبدالحلیم: تیر هیر شاعران، پښتو اکیډیمی، پیښور ۱۹۶۳.
- اکبر، عبدالاکبرخان: روښانیان یاد د مغلو تارکیان، پیښور ۱۹۶۸.
- بښتانی، عبدالله (ځیرندوي): پښتانه شعرا، څلورم ټوک، پښتو ټولنه، کابل ۱۳۵۷.
- بښتانی، عبدالله (ځیرندوي): د کلید افغانی تعلیقات، د پښتو د پرمختیا او پیاوړتیا آمریت، کابل ۱۳۵۶.
- بریښ: د زوي قربانی، د زیري کالنی، پښتو ټولنه، کابل ۱۳۶۰.
- بریښ: د روښان یاد، د مقالو مجموعه، پښتوټولنه، کابل ۱۳۵۵.
- بینوا. عبدالروف: د افغانستان نومیالی (دریم ټوک) دپښتو پرمختیا او پیاوړ تیا آمریت کابل، ۱۳۵۶.
- حبیبی، عبدالحی (پوهاند): د پښتو ادبیاتو تاریخ، (دوهم ټوک)، (دوهم چاپ) پښتو ټولنه، کابل ۱۳۴۲.
- حبیبی، عبدالحی (پوهاند): پښتانه شعراء، (لومړي ټوک)، پښتو ټولنه، کابل ۱۳۲۰
- حبیبی، عبدالحی (پوهاند): د خیرالبیان مقدمه، کابل پوهنتون، د ادبیاتو پوهنځی ۱۳۵۳.
- حبیبی، عبدالحی (پوهاند): تاریخچهء سبکهاي اشعار پښتو کابل کالنی، ۱۳۱۹.

- حبیبي، عبدالحی (پوهاند): د خوشحال ختک سواتنامه، پښتو ټولنه، کابل، ۱۳۵۸.
- ختک، سکندرخان: پندنامه او شمایل نامه، د زلمی هیوادمل په زیار، د افغانستان د علومو اکاډیمی ۱۳۶۲.
- درویزه (اخوند): مخزن الاسلام، د پروفیسور تقویم الحق کاکاخیل په زیار، پښتو اکاډیمی پیښور ۱۳۶۷.
- درویزه (اخوند): تذکره الابرار و الاشرار، پیښور، ۱۳۶۰.
- درویزه (اخوند): ارشاد المردین، دهلی ۱۲۸۹ هـ ق.
- درویزه (اخوند): ارشاد الطالبین، لاهور، ۱۳۳۵ هـ ق.
- رښتین، صدیق الله (پوهاند): د پښتو د ادب تاریخ، پښتو ټولنه، کابل ۱۳۲۵.
- رښتین، صدیق الله (پوهاند): پښتو پیژندنه، پښتو څېړنې، کابل - پښتو ټولنه ۱۳۵۶.
- رشاد، عبدالشکور (اکاډمیسین): ګلشن روه، مقدمه، کابل - د پښتو پرمختیا او پیاوړتیا ۱۳۵۶.
- رشاد، عبدالشکور (اکاډمیسین): دخوشال په آثارو کې د ګلستان او بوستان د وړمو څرك.
- د زرغونې یاد، د زلمی هیواد مل په زیار، کابل ـ د پښتو څړنو بین المللی مرکز ۱۳۶۲.
- روهی، محمد صدیق (د اکاډمیسین کاندید): ادبی څېړنې، کابل، ننګرهار پوهنتون ۱۳۶۰.
- غلجی، نورمحمد: نافع المسلمین، د زلمی هیوادمل په زیار، کابل - دکلتور ریاست ۱۳۶۳.
- کامل، دوست محمد خان: (مقدمه)، تاریخ مرصع، د افضل خان، یونیورستی بك ایجنسی پیښور ۱۹۷۴.

- موتیروس، گریګورویچ، اسلانوف: د روښانیانو ملي نهضت، دسرمحقق معتمد ترجمه کابل، پښتو ټولنه، ۱۲۵۳.
- مخلص، علي محمد: حالنامه، د نور الله اولسپال په زیار کابل - پښتو ټولنه، ۱۳۶۴.
- هوتک، محمد: پټه خزانه، دمرحوم حبیبی په زیار، کابل - پښتو ټولنه، ۱۳۲۳.
- هیوادمل، زلمی: فرهنګ زبان و ادبیات پښتو، (لومړي ټوك)، کابل- تالیف او ترجمه، ۱۳۵۶.
- هیوادمل زلمی: فرهنګ ادبیات پښتو (دوهم ټوك)، کمیته دولتی طبع ونشر - کابل، ۱۳۶۵.
- هیوادمل زلمی: فرهنګ ادبیات پښتو، (دریم ټوك)، کمیته دولتی طبع و نشر - کابل ۱۳۶۶.
- هیوادمل، زلمی: د هند د کتابخانو پښتو خطی نسخې، کابل، د علومو اکاډیمي، ۱۳۶۳.
- هیوادمل، زلمی: د ارزانی روښانی الفنامې، کابل مجله د ۱۳۵۵ کال لومړۍ ګڼه.
- هیواد مل، زلمی: بیګ محمد، کابل مجله، د ۱۳۵۶ کال پنځمه ګڼه.

# چاپي تيروتنې

ګرانو لوستونکو!

زموږ د هڅې سره سره په دې کتاب کې يو شمير چاپي تيروتنې راغلې دي، هيله لرو له لوستلو نه مخکې دغه غلطي اصلاح کړی.

| پاڼه | کرښه | ناسم | سم |
|---|---|---|---|
| ك | عنوان | پيروان | پيروانو |
| م | ۴ | خوار | خور |
| ۱ | عنوان | سرخبرې | د سرخبرې |
| ۷ | ۱۸ | پايينې | پاپينې |
| ۱۴ | ۱۳ | دريار | دربار |
| ۱۴ | ۱۷ | کبرو په | کبرويه |
| ۱۹ | ۲ | بعدالکود | بعدالکور |
| ۲۵ | ۱۱ | صوف | صوفی |
| ۳۱ | ۸ | په | به |
| ۴۱ | ۱۲ | ګتنو | ګتو |
| ۴۲ | ۱۳ | خلورو | څلورو |
| ۴۹ | ۱۵ | مقتدا | مقتدر |
| ۵۳ | ۱۹ | خيرالبيان | خرالبيان |
| ۹۷ | ۶ | منيجر راورتی | ميجر راورتی |
| ۱۱۲ | ۱۸ | مخزالاسرار | مخزن الاسرار |
| ۱۱۸ | ۷ | ناص | نامی |
| ۱۱۸ | ۱۸ | پر | بر |
| ۱۲۱ | ۳ | بی | يې |
| ۱۵۸ | ۱ | يې | بې |






# چاپی تیروتنی

ګرانو لوستونکو!

زموږ د هڅی سره سره په دي کتاب کې یو شمیر چاپي تیروتنی راغلی دي، هیله لرو له لوستلو نه مخکی دغه غلطی اصلاح کړی

| پاڼه | کرښه | ناسم | سم |
|---|---|---|---|
| ك | عنوان | پیروان | پیروانو |
| م | ۴ | خوار | خور |
| ۱ | عنوان | سرخبری | د سرخبری |
| ۷ | ۱۸ | پایینی | پایینی |
| ۱۴ | ۱۳ | دریار | دربار |
| ۱۴ | ۱۷ | کبرو په | کبرویه |
| ۱۹ | ۲ | بعدالکود | بعدالکور |
| ۲۵ | ۱۱ | صوف | صوفی |
| ۳۱ | ۸ | په | به |
| ۴۱ | ۱۲ | کتنو | کتبو |
| ۴۲ | ۱۳ | خلورو | څلورو |
| ۴۹ | ۱۵ | مقتدا | مقتدر |
| ۵۳ | ۱۹ | خیرالبیان | خرالبیان |
| ۹۷ | ۶ | منیجر راورتی | میجر راورتی |
| ۱۱۲ | ۱۸ | مخزالاسرار | مخزن الاسرار |
| ۱۱۸ | ۷ | ناص | نامی |
| ۱۱۸ | ۱۸ | پر | بر |
| ۱۲۱ | ۳ | بی | یې |
| ۱۵۸ | ۱ | یې | بې |

